# د عامه ذهنیتونو
# د روښانولې سرچینې

الحاج خیرنیاز محمد داود ناظم



د هر انسان په ځانګړې توګه ژورنالیستانو لپاره ګټور کتاب

# عامه ذهنیتونه

# او د روښانولی سرچینې

**د هر انسان په ځانګړې توګه د ژورنالیستانو**

**لپاره ګټور کتاب**

**لیکوال: الحاج څېړنیار محمد داوُد ناظم**

**۱۳۹۲هـ ل- کابل**

د كتاب پېژندنه:

---

| | |
|---|---|
| د كتاب نوم: | د عامه ذهنيتونو د روښانولی سرچيني |
| ليکوال: | الحاج څېړنيار محمد داوُد ناظم |
| ناشر: | خيبر خپرندويه اداره |
| د چاپ ځای: | کابل |
| د چاپ کال: | ۱۳۹۱هـ ل |
| شمير: | ۱۰۰۰ ټوکه |
| د پښتی ډيزاين: | نعمت الله سعيد |



۰۷۰۰۱۷۸۴۱۷

# اهداء

**دغه کتاب خپلې مجاهدې او غیرتي مور ته اهداء کوم، چې زما د مجاهد پلار له شهادت څخه وروسته یې، خپل ژوند زمونږ د سالمې تربیې او تعلیم لپاره اهداء کړ**

**او د الله ج په مینه یې**

**په ډېره مینه د هجرت او جهاد په ګرمو ولولو کې وروزلو**

**او د الله ج، پیغمبر ص او د هغوی د اوامرو په څنګ کې یې**

**د خوږ هېواد مینه هم**

**زمونږ په توده وینه کې**

**په مینه وکرله**

او پر ځای ګڼم چې د خیبر خپرندویه اداري مسؤولینو او کارکوونکو ته له خالق تعالی څخه اجر وغواړم چې د دې کتاب د چاپ او خپرېدو ژمنه یې کړې ده، خدای پاک دې په جاریه صدقه کې ورته حساب کړي چې د تل لپاره یې اجر وروړسېږي.

# فهرست



## لومړی څپرکی



## دوهم څپرکی

### عامه ذهنيتونه او د روښانولۍ مرجَع



## دريم څپرکی

### د عامه ذهنيتونو د تيارو سرچينې، او په قرآن کريم کې د هغو درملنه

## د لیکوال لنډ ژوند لیک

الحاج څېړنیار محمد داود ناظم د شهید انجنیر عبدالغفار زوی، په دې وخت کې د افغانستان د علومو اکاډمۍ علمي غړی او د همدې ادارې د ژورنالیزم د انستیتوت علمي منشي په توګه دنده اجراء کوم، همدارنګه د دعوت پوهنتون کې د ځوان نسل په تعلیم او تربیه بوخت یم.

په هېواد کې مې د پخواني مات شوي سرخوړلي شوروي اتحاد په وړاندې د زړن ملت د پاڅون د لومړیو کلونو په څپو او د الله اکبر د آوازونو له ولولو سره سم د کابل د ولایت د پغمان د ولسوالۍ د خالدارې په کلي کې دنیا ته سترګې پرانیستې دي.

لا وړوکی ماشوم وم چې پلار مې د جهاد په سنګرونو کې د شهادت جام وڅښه او له خپلې کورنۍ سره د پاکستان په لور هجرت کولو ته اړ شوو، هلته مې د خپلې غیرتي، مجاهدې او دینداري مور، ماماګانو او نورو دوستانو په مرسته لومړنۍ زده کړې په عمر بن حزم مدرسه او ثانوي زده کړې مې د اتحاد په عالي لېسه کې په اعلی درجې پای ته ورسولې. یونیم کال مې د دعوت او جهاد د پوهنتون د ادبیاتو د پوهنځي د ژورنالیزم په څانګه کې زده کړې وکړې او له هغې وروسته مې خپلې لوړې زده کړې د کویت د پوهنتون د ادبیاتو د پوهنځي د ژورنالیزم په څانګه کې په ٪۹۳ په ۱۳۸۰هـ ل کال کې تکمیل کړې او دوهم تخصص مې د عربي ژبې په ادبیاتو کې د نوموړي پوهنتون د ادبیاتو په پوهنځي کې پوره کړې دي.

## دندې:

- د افغانستان د علومو د اکاډمۍ علمي غړی او د همدې ارګان د ژورنالیزم د انستیتوت علمي منشي.
- د دعوت پوهنتون د ژورنالیزم پوهنځي برحال استاد.
- د ښاري پراختیا وزارت د مطبوعاتي دفتر او خپرونو مسؤول، په همدې جریان کې د«انکشاف شهر» مجلې مؤسس او مسؤول مدیر او د هغه وزارت د ویب سایت(www.moud.gov.af) مسؤول مدیر له ۱۳۸۴-۱۳۸۸هـ ل کال پورې.
- د ظفر راډیو مسؤول مدیر. له ۱۳۸۳- ۱۳۸۴هـ ل کال پورې.
- د «دعوت اسلامی» جریدې مهتمم له ۱۳۸۱- ۱۳۸۳هـ ل کال پورې.
- د پوهنتون په دوره کې، د«آفاق» جریدې خبریال او لیکوال، چې د کویت پوهنتون له خوا په اونۍ کې یو ځل خپرېدله.
- همدارنګه د مکتب په وروستیو کلونو کې د اتحاد د لېسې د دېوالي جرېدې«منبع الإحساس» مسؤول مدیر او د نوموړې لېسې د ادبی-فرهنګی برنامو ناظم.

### چاپ شوي آثار:

د عامه ذهنیتونو د روښانولی سرچینې؛ په پښتو، دري او عربي ژبو مې په سلګونو ګزارشونه مقالې شعري او نثري ټوټې په بېلابېلو ورځپاڼو، جریدو او مجلو کې چاپ شوي دي چې د هغو له جملې څخه د دغو مراجعو نومونه اخیستلای شو: د «آفاق» اونیزه، «الرأی العام» ورځپاڼه او «البعوث» مجله په کویت کې؛ د«دعوت اسلامی» جریده، «اصلاح ملی» جریده، «اصلاح»، «هیواد» او«انیس» ورځپاڼې او «انکشاف شهر»، «تبیان»، «دیوه»، «تکبیر»، «سبا ستوری» او «ګاهنامۀ هنر» مجلې په هېواد کې.

# تقريظ

(د عامه ذهنيتونو د روښانولی سرچيني) هغه ارزښت لرونکی اثر دی چي د محترم ناظم صاحب په قلم کښل شوی دی، په ډېر منظم ډول په دريو څپرکيو؛ د موضوع مخينه، عامه ذهنيتونه او د روښانولی مرجع، د عامه ذهنيتونو د تاريکی سرچيني او په قرآنکريم کي د هغو درملنه باندي وېشل شوی دی.

د ټول ولس د وګړو ذهنونه د واکونو د رنګولو په ادلون بدلون کي ډېر مؤثر وي، مونږ وينو چي په عربي نړۍ کي ديکتاتور واکمنان د عامه ذهنيتونو په بدلون سره يو په بل پسي رانسکورېږي، له همدې کبله اسلام د عامه ذهنيتونو د رغوني لپاره غوره ميتود په کار اچولی دی چي هماغه ميتود که پلی کړل شي د ولس ذهنيت به د مثبت ګرايي پر لوري حرکت وکړي او انساني ژوند به آرامي او لذت خپل کړي، د جګړو ټغر به ټول شي د آبادۍ څپي به په حرکت راشي زمونږ هېواد همدېته اړتيا لري چي د فکرونو د درملني درمل له اسلام څخه ترلاسه کړي، واکمن، علماء او مؤثر شخصيتونه مکلفيت لري چي د نالوستي ولس په فکر جوړونه کي غښتلي قدمونه اوچت کړي تر څو د ولس پر فکر د پرديو فرهنګي هجوم اثر وانچوي او د تاريکی کندو ته يې ور ونغورځوي.

دغه کتاب په ډېر حساس وخت کي همدا موضوع د اسلام په هنداره کي په ښه توګه څېړلې ده، هر مسلمان ته د دې کتاب لوستل ضروري او لازمي کار بلل کېږي ځکه د دېموکراسی په بهير کي د رسنيو له هجوم سره يو ځای د ولس د افکارو بدلون د راتلونکي وخت واکمنان په نښه کوي.

له بده مرغه د روشن فکر کلمه زمونږ په هېواد کې د تاریخ په اوږدو کې په ډېره ناوړه توګه کارول شوې ده د همدې کلمې غوره تعبیر محترم محمد داود ناظم په دغه مفید اثر کې ښه په ډاګه کړی دی، د اسلام په قاموس کې روشن فکري همدا ده چې دلته وربانديې بحث شوی دی.

زه د ټولو چاپي، انځوریزو او غږیزو رسنیو مسؤولینو ته د دغه کتاب د لوست بلنه ورکوم او له لوی څښتن څخه هیله من یم چې هغوی به خپلې رسنۍ د الله تعالی د دین د خدمت لپاره وکاروي او د ولس فکرونه به په اسلام روښانه کړي د جهل له تیارو څخه به هغه وژغوري. لیکوال ته د لا بریاؤ، دنیوي او اخروي کامیابیو دعاء کوم.

څېړنوال سید حبیب شاکر

د افغانستان د علومو اکاډمۍ علمي غړی او د فقه او قانون د

مرکز رئیس

کابل

۲۹/۱۲/۱۳۹۰هـ ل

# سریزه

عامه ذهنیتونه د سترو امپراتوریو د رامنځ ته کولو او نړولو زور او پیاوړتیا لري او دا حقیقت د تاریخ په اوږدو کې یو ځل نه چې په ډېر واره جوت شوی دی چې له همدې کبله نړیوالو په وروستیو پېړیو کې خپله زیاته توجه ورګرځولې او د لاس ته راوړلو او سوقولو په لاره کې یې زیاته پانګه لګوي.

د روښانولی، روښانفکری، تمدن او پرمختګ لارې او سرچینې په ډېرو ټولنو کې له ډېرو خلکو ورکې دي؛ د رڼا او تاریکی، تور او سپین، ځمکې او آسمان څرګند توپیر او لوری ورڅخه ورک شوی دی؛ کله یې د ښځو او نرو په بې قیده او بې شرطه آزادی، تنګو او بربنډو جامو، اخلاقي فسادونو، د مختلطو نڅاوو او ګډاوو په صحنو، د میو او شرابو په جامو او کله یې هم د نورو د حقوقو، انساني کراماتو او عامه قوانینو تر پښو لاندې کولو کې لټوي او په څرګنده د بشر ضد شیطاني لارې روښانفکري، پرمختګ او تمدن بولي؛ ډېر د تعجب ځای ده چې سپین ته تور او تور ته سپین وایي**!!**

په تأسف سره د ځینو کسانو او ځوانانو مبایلونه، جیبونه، کتابچې، بکسونه، کمپیوټرونه او کورونه له انساني اخلاقو څخه لرې او فاسد کوونکو عکسونو، فلمونو، آوازونو، سي ډي ګانو او انځورونو څخه ډک وي چې دا ټول د انسان مختلف حواس ډېر بې ځایه مصروفوي، د الله له یاد او عبادت څخه یې اړوي او په بد اخلاقیو یې روږدي کوي.

په دې کې هېڅ شک نشته چې د انسان ذهنیت او شخصیت د هغه له لیدو، اورېدو، غږېدو، خوړو، لمس کېدو، اغوستو او څښلو څخه جوړ او

د پخېدو په لور ورځي. نو د هغه چا چې دا ټول حواس په حرامو روږدي(عادت) وي، په خوب او ويښه کې په نارواوو او د تور تمونو په سرچينو بوخت وي نو ذهنيت او شخصيت به يې هم هرو مرو هماغسي په حرامو ککړ او تاريک جوړ او په همدې توره تياره دنيا کي به د زهرو د پخېدو په لور ورشي او د دواړو نړيو له خوارۍ او ذلت سره به مخ شي.

د ډېرو کسانو داسي خواشينوونکی حالت مې چې وليد نو د النور او عليم ذات د خوښۍ په موخه مې د خپل مسؤوليت د اداء او د ټولني د اصلاح لپاره د دې موضوع ليکلو او د کتاب په ښه چاپ ته ملا وتړله ترڅو د ذهنيتونو د روښانولی اصلي مرجع چې الله ج دی او لاره يې چې قران کريم ده او لارښود يې چې رسول صلی الله عليه و سلم دی؛ خلکو ته ښه روښانه او جوت شي، په لاره يې روان او خپل ذهنيتونه پرې روښانه کړي.

نو په دې خاطر چې ټل مونږ ته هره رڼا يا نېکي ښه وبرېښي او پر هغو مو عمل نصيب شي او هره تاريکي يا بدي بده وبرېښي او له هغو څخه وژغورل شو، بايد ټل دا دعا د خولې وِرد وګرځوو: اللهم أرِنا الْحقَ حقاً وَارْزُقْنا اتِّبَاعَه، وَ أرِنا الْبَاطِلَ بَاطِلاً وَارْزُقْنا اجْتِنَابَه. ژباړه: ای الله ته مونږ ته حقيقت يا نېکي ښه وبرېښوې او پر هغو مو عمل په برخه کړې! او باطل يا بدي راته بده وبرېښوي او له هغو څخه مو اجتناب په برخه کړې.

په درنښت

الحاج څېړنيار محمد داوُد ناظم

کابل- خوشحال مېنه

۷/۱۱/۱۳۹۰هـ ل

# لومړی څپرکی

## مخينه

مخکې له دې چې د عامه ذهنيتونو په روښانولۍ او د هغو پر سرچينو وغږېږو اړينه ده چې د عامه ذهنيتونو يا افکار عامه( Public Opinions) په مخينه يا تاريخچه په ډېر لنډ ډول رڼا واچوو تر څو له يوې خوا له اصل هدف څخه لرې نه شو او له بلې خوا لوستونکي بنستيزې موضوع ته له رسېدو مخکې ستړي نه شي.

د بشر له خوا د عامه ذهنيتونو پېژندنه د يو اوسني علم په څېر او د هغو ارزښت ته د پام اووښتو له لحاظه دومره اوږد تاريخ نه لري؛ پوهاند حبيب الرحمن هاله عامه ذهنيتونو او تبليغاتو ته د دوو پديدو يا نوو پيدا شوو څيزونو نوم کاروي او پېژندنه يې تر شلمې پېړۍ پورې تړي نوموړی ليکي:«افکار عامه و تبليغات دو پديدهٔ برازنده و شناخته شدهٔ قرن بيستم می باشند که بر اذهان رهبران گروههای اجتماعی و سياسی و همينگونه بر سطور نشريه ها و امواج راديو و تلويزيون تسلط خود را قايم ساخته اند. البته هيچ رهبر اجتماعی و سياسی و هيچ کارشناس و سائل ارتباط همگانی يا گروهی بدون شناخت ژرف افکار عامه و بدون کاربرد ماهرانهٔ تبليغات شاهد پيروزی اجرای نفوذ بر اذهان ديگران را در آغوش نخواهد کشيد. پس بر آنهاست که پيرامون اين دو پديده آگاهی و دانش لازمی بدست اوردند تا در پرتو آن وظايف اثرافگن خود را به نحوی شايسته بسر رسانيده بتوانند.»([1])

خو د عامه ذهنيتونو د پېژندني تاريخچه د يو مصري عالم دکتور سمير حسين له خوا تر اتلسمې پېړۍ پورې غځول کېږي نوموړی په خپل

کتاب کې ليکي:«...أن المفهوم ظهر فی القرن الثامن عشر...»([٢]) يعني دا مفهوم په اتلسمه پېړۍ کې څرګند شوی دی.

نو له يوې خوا د بشر ذهن د دې علم په اړه ډېره سابقه او زياته تجربه نه لري او له بلې خوا په دې علم کې ملموس او مشهود مواد او وسايل هم نشته چې د يو فرمول يا شکل په څېر يې خلك په آسانی سره وپېژندلای شي او تل په ورته حالاتو او پېښو کې ترې ګټه واخلي ځکه د عامه ذهنيتونو پېژندل ستونزمن، قياس يا د کچې معلومول يې ډېر ستونزمن او ليدل يې نا ممکنه کار دی نو له همدې کبله دا علم ډېر مغلق، ترلاسه کول يې سخت او په ټولنه کې يې پياده کول خورا حساس برېښي. خو سره له دې مو د عامه ذهنيتونو قوت او ارزښت دې ته اړباسي چې په دې علم کې برلاسي، په قياس يا د کچې په درك کولو کې يې ټينګ لاسي او په ټولنه کې هغو پورې اړوندو موضوعاتو په پلي کولو کې خورا محتاط او پاملرونکي اوسو.

# دوهم څپرکی

## عامه ذهنیتونه او د روښانولی مرجَع

### ۲-۱- عامه ذهنیتونه:

عامه ذهنیتونه، چې په دري کې افکار عامه عربي کې الرأي العام او انګلیسي کې Public Opinions ورته ویل کېږي په یوه ټولنه کې د ذهنیتونو او افکارو پر هغه روان بهیر باندې دلالت کوي کوم چې د هغې ټولنې په عامه وګړو کې د یوې معیني موضوع، پېښې یا قضیې...په اړه خپور وي.

عامه ذهنیتونه د هر حکومت په سیاست، د هر بدلون او هر پرمختګ په منځ ته راتګ کې پراخ او قوي رول لري او ټوله نړۍ ورته په اوسني عصر کې په ځانګړي ارزښت قایله ده او پراخه پانګه یې د لاس ته راولو په موخه لګوي.

د عامه ذهنیتونو واحد تعریف یو ستونزمن کار دی او لکه لومړي څپرکي کې مو چې ورته نغوته یا اشاره وکړه د بشر له خوا یې پېژندنه دومره اوږد تاریخ هم نه لري.

عامه ذهنیتونه د ژورنالیزم په نوم کتاب کې داسې پېژندل شوی:

«Public Opinion: the opinion or attitude of the public regarding a particular matter. In modern democracies it may be a force of considerable power, setting limits within which government policy must operate.(3)

ژباړه: د یوې ځانګړې پېښې یا موضوع په اړه عامه ذهنیت یا دریځ ته وایي. په عصری دموکراسیو کې کېدای شي چې د پام وړ ځواك وي او د هر حکومت د سیاست په وضع شوو حدودو کې باید عملی جنبه ولري.

یو مصری عالم دکتور سمیر حسین عامه ذهنیت ته داسې تعریف ورکوي چې ژباړه یې په دې ډول ده:«عامه ذهنیتونه په هره ټولنه کې عبارت دي له مجموعې د افکارو یا غالب نظر یا خپرې شوې عقیدې یا مجموعې د نظرونو او یا ټولنیز اتفاق څخه په اکثرو ډلو یا افرادو د یوې ټولنې کې د یوې مشخصې موضوع، پېښې، واقعې، نوې پدیدې او یا یوې کړکېچنې قضیې په اړه؛ هغه کېدای شي ټولنیزه، فرهنګي، اقتصادي، سیاسی، تربیوی او یا فني وي؛ او یا همدا رنګه کېدای شي چې هغه محلي، ملي، منطقوي او یا نړیواله وي؛ چې د ټولنې ډېرو خلکو ته د اهمیت وړ او په اړه یې اختلافات راولاړ شوي وي خو د همدې مجموعې قوت او تأثیر د اړوندې قضیې یا موضوع په اړه په نورو خور او حاکم وي.»

همدارنګه پوهاند حبیب الرحمن هاله «عامه ذهنیتونه» په خپل کتاب کې داسې تعریفوي: «افکار عامه یکی از مظاهر دماغ اجتماعی است که از توافق نظری نماینده گی میکند که بین مردم راجع به آن مسائلی حاصل می شود که بر جامعه تأثیر بارز و قابل ملاحظه داشته می باشند.

به این اساس افکار عامه مجموعه یی از انواع گوناگون تصورات، خیالات، نظریات، عقاید، توقعات، آرمانها و تعصبات ملی است. این مجموعه در آغاز بی نظم و ترتیب و فاقد شکل معینی بوده روز بروز و هفته به هفته دستخوش دگر گونی واقع می شود.»([٤])

له پورتني تعریف څخه دا هم څرګندېږي چې په یوه ټولنه کې عامه ذهنیتونه ثابت نه وي بلکې د پیل نقطه او د جوړښت حالت، د بدلون او ټینګښت مرحله، د قوت او تقویت مسیر، په ځینو حالاتو کې اوج ته د رسېدلو او زوال امکانات لري چې هره اونۍ هره ورځ او هره لحظه یې د ټاکل شوو عواملو د اغېزو له کبله د جوړښت، تغییر، تقویت، ضعف او زوال حالتونه تصور کېدلای شي، د عامه ذهنیتونو له همدې خاصیت نه په ګټه اخیستنه رسنۍ کولای شي چې هغو ته د مثبت او ګټور تګلورې د ټاکلو په موخه په ټولنه کې فعالیت وکړي او هغه رسنۍ چې د عامه ذهنیتونو د منفي تګلورې په ټاکلو کې د شخصي او یا حزبي ګټو د ترلاسه کولو په موخه عامه ګټې په نظر کې نه ساتي هغوی په حقیقت کې د ژورنالیزم بنسټونه تر پښو لاندې کوي، ملت او خدای پاك ته وجداناً خجالت او مجرم دي.

## ۲-۲- د عامه ذهنیتونو او عامه شعور تر منځ توپیر:

شعور په لغت کې د درک، احساس او پوهېدلو په معنی ده او عامه شعور د ټولنې د بېلابېلو پېښو او موضوعاتو له حقیقت څخه د وګړوعامه درک، احساس او برداشت ته ویل کېږي. په ټولنه کې عامه ذهنیت د عامه پوهاوي او عامه شعور د کچې په پایله کې را منځ ته کېږي نو عامه شعور د عامه ذهنیت لومړنۍ انګېزې او بنسټونه جوړوي.

په هره کچه چې د ټولنې وګړي یو له بل سره تړلي، ملي او نړیوال وي په هماغه کچه د عامه شعور چټکتیا(سرعت) پیاوړی وي او په هره کچه چې د ټولنې وګړي زړه سواندي، پوه، هوښیار، مسؤولیت پېژندونکي، د بل په خوښۍ ښاد او په غم غجن وي په هماغه کچه د عامه

شعور ژوروالی (عمق) پیاوړی، عکس العمل یې انساني او مناسب وي لکه ګل پاچا الفت چې وایي:

زړه یې مه بوله تور کاڼی د صحرا دی

په لیدو د زخمي زړه چې زخمي نه شي

نو انسان باید یو با شعوره او با احساس شخصیت وي او دې ته ښه ځیر وي چې په چاپېریال کې څه روان دي او د ده دنده یا مسؤولیت یې په وړاندې څه دی. د انسان د شعور د ښه فعالېدو په خاطر رسول صلی علیه وسلم فرمایي:«عَنْ حُذَيْفَةَ بْنِ الْيَمَانِ ، قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَنْ لا يَهْتَمُّ بِأَمْرِ الْمُسْلِمِينَ فَلَيْسَ مِنْهُمْ»(٥)- څوک چې د مسلمانانو چارو یا حالت ته پاملرنه ونه کړي نو له هغوی څخه نه ده.

پورتنی حدیث د مسلمانانو د شعور د ژوندي ساتلو لپاره یو ښکلی درس ده چې باید له خپل محیط څخه آګاه او په وړاندې یې خپلو همېشنیو دندو ته پاملرونکی اوسي لکه یو حکیم پلار چې خپل هغه بچي ته نصیحت کوي کوم چې د خپلې کورنی د چارو په وړاندې پام نه کوي: واهلکه داسې یې لکه هېڅ چې د دې د کور نه یې! اوکه د هېواد، نړۍ او انسانانو په اړه پام نه کوي نو په ترتیب سره ورته وایي چې: داسې یې لکه هېڅ چې د دې وطن/ نړۍ نه یې! یا لکه هېڅ چې انسان نه یې! نو په دې توګه هغه څوک چې د مسلمانانو چارو ته پام نه کوي (لکه هېڅ چې مسلمان نه وي) خطاب ورته مناسبه ده. نو په حقیقت کې داسې جملې د انسان په زړه کې شعور راژوندی کوي، د غفلت له خوبه یې ویښوي او خپلو دندو ته یې متوجه کوي، هغه ته د خپل شعور واګې یا کنټرول په لاس ورکوي، یو با اراده او د لوړ عزم شخصیت تـرې جوړوي.

له شعور څخه د ښې ګټې اخیستنې په موخه «د شعور کنټرول» تر عنوان لاندې د بېنوا وېب پاڼې لیکلي: «د مغزو تر ټولو مهمه برخه هغه ده، چې خاطرې او پېښې په کې ساتل کېږي. همدا برخه د شعور په نامه یادېږي. ارواپوهان په دې هکله وایي چې با اراده کسان کولای شي خپل شعور پخپله کنټرول کړي، ډېر زیات کسان له دې څخه ګټه اخلي. د مثال په توګه د ډېر تاکېد او یا د شعور د کنټرول له امله هر سهار په شېبرو بجو له خوبه پاڅېږي او که وغواړي د سهار په پنځو بجو له خوبه بېدار شي دا کار هم د شعور د کنټرول له مخې ترسره کوي.»

او په قرآن کریم کې هم ۲۱ ځایه تنها د«يَشْعُرُونَ» کلمه یاده شوې ده چې شپږ ځایه یې د«ما يَشْعُرُونَ» او باقي یې د «لا يَشْعُرُونَ»کلمه ذکر شوې او غالباً په څنګ کې ورسره د مکر، فریب او عذاب موضوعات یاد شوي دي چې دا په دې دلالت کوي چې نه شعور یعنې مړ احساس د انسان د ځان غولونې او عذاب، او ژوندی احساس د ښېګڼې او ثواب سبب کېدای شي. لکه یوه بې حجابه ښځه چې ښه په دې پوهېږي چې په بې حجابۍ کې یې روغتیایي، ټولنیزه، رواني او دیني نا کراري نغښتې ده خو بیا هم ځان غولولو لپاره رنګارنګ دلایل راپیدا کوي، حقیقت له ځانه ورکوي او ځان ته پرې شیطاني تسل ورکوي، خو سره له دې یې فطرت او معنویت په یوې ستړې او درنې ورکې پسې لټېږي او ناکراره وي، د تعجب ځای دا ده چې همدا ښځه به له یوې خوا د خپلې مور په حج، حجاب او دینداری ویاړي او له بلې خوا به خپلې بې حجابۍ ته د پرمختګ دنښې په سترګه ګوري!! همدې ته وایي ګمراهي او ځان غولول. لکه په لاندې مبارک آیت کې چې خالق تعالی فرمایي:

«يُخَادِعُونَ اللَّهَ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَمَا يَخْدَعُونَ إِلَّا أَنْفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُونَ؛ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ فَزَادَهُمُ اللَّهُ مَرَضًا وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ بِمَا كَانُوا يَكْذِبُونَ؛ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ لَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ قَالُوا إِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُونَ؛ أَلَا إِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُونَ وَلَكِنْ لَا يَشْعُرُونَ»(٦)- دوی له الله او مؤمنانو سره چل کوي په داسي حال کي چي دوی په دې حقيقت نه پوهېږي چي له ځان سره چل کوي؛ (نه پوهېدل يي په سبب د دې دي چي) په زړونو د دوي کي(معنوي) مرض او عيب ده(فعاليت نه شي کولای) نو الله د دوي مرض زياتوي او هغوی ته په سبب د درواغو يي دردناک عذاب ورکوي؛ او کله چي هغوی ته وويل شي چي په ځمکه کي فساد مه کوئ! هغوی وايي چي: مونږه نېکان يو؛ وپوهېږئ چي همدوي بدکاران دي خو د دې حقيقت درک نه شي کولای.

له پورتنيو مبارکو آياتونو څخه لاندې مهمي نتيجي تر لاسه کولای شو:

۱ـ شعور د ښکاره حقايقو درک ته وايي او څوک چي هغه درک نه شي کړای شعور نه لري يا کار ترې نه شي اخيستلای.

۲- څوک چي شعور نه لري يا په بل عبارت څوک چي د ښکاره حقيقتونو درک ونه شي کړای هغوی د ځان غولولو لپاره باطل دلايل او غلطي لارې غوره کوي.

۳- څوک چي شعور ونه لري(حقيقت درک نه شي کړای) د هغوي په زړونو کي مرض يعني معنوي کوړوالی، نقص او عيب دی.

۴- چا چي ښکاره حقيقتونه درک نه شو کړای په درواغو روانيږي او له همدې کبله هغوی ته دردناک عذاب دی.

۵- چا چې ښکاره حقیقتونه درک نه شو کړای د هغوی بنسټ په فساد او غلطیو لړزیږي په داسي حال کې چې د همدې حقیقت درک هم نه شي کولای ځکه د هغوي د شعور قوه ټوله محو شوې ده.

نو دې پایلې ته رسیږو چې شعور د حقیایقو د پیژندلو او د مثبت ذهنیت د ایجادولو تومنه ده. که فردي یا عامه شعور فعال وي نو عامه ذهنیت به هم مثبت لوري ته روان او د ټولنې د پرمختګ لاره به هواره شي؛ او که شعور یا احساس مړ شو نو انسان حقیقت نه شي درک کولای او عامه ذهنیت هم په غلط او فاسد بنسټ باندې ریږدي او بې له ځنډه په تیارو کې ورننږیږي.

## ۲-۳- د عامه ذهنیتونو ځانګړنې او بنسټونه:

له پورتنیو معلوماتو او پلټنو څخه، عامه ذهنیتونو ته لاندې ځانګړني او بنسټونه ټاکلای شو:

- عامه ذهنیتونه د ټولنو او هېوادونو سرنوشت ټاکي.
- د عامه ذهنیتونو پیاوړتیا له بلې هرې پیاوړتیا څخه پیاوړې ده.
- د عامه ذهنیتونو بنسټونه په عقایدو، معلوماتو، عادتونو، رواجونو، غوښتنو، نظریاتو او اړتیاوو باندې ولاړ وي.
- عامه ذهنیتونه د خلکو د نظریاتو له مجموعې څخه عبارت دي.

عامه ذهنیتونو کې بېلابېل نظریات او لیدلوري لیدل کېږي چې هر یو یې ځان ته اسباب او دلایل لري.

- عامه ذهنيتونه په سياسي، ټولنيز، علمي، فرهنګي، هنري، فني او تخنيکي ژوند کې ستر رول لري که مثبت او صواب لوري ته سوق شي نو سترو پرمختګونو ته به ورسيږي.

- عامه ذهنيتونه د مهمو موضوعاتو او حوادثو په اړه د حساسيت په لوړو پوړونو کې ځای لري؛ چې له همدې کبله په دې برخه کې کار کول ډېر احتياط غواړي.

- خپله عامه ذهنيتونه هم له بېلابېلو بهرنيو مؤثراتو او فرهنګي، اقتصادي،تربيوي، ټولنيز ژوند، فردي موقف، سياسي حالت او داسې نورو عواملو څخه متأثر کيږي يعنې دا عوامل په عامه ذهنيتونو باندې هم اغېزې کوي.

- عامه ذهنيتونه متحرک او ديناميکي ځانګړنه لري، يعنې تل په حرکت کې وي؛ کمزوري، زوال، تغيير، پياوړتيا، پرمختګ او پوخوالی قبلوي.

- عامه ذهنيتونه يوه فکري پديده ده چې د ډله ايز فکري فعاليت په پايله کې منځ ته راځي.

- په عامه ذهنيتونو باندې د فرد او ټولنې اجتماعي او رواني اړيکې اغېزې کوي، نو دا يو ټولنيز خوځښت يا حرکت دی چې د افرادو له نظرياتو څخه جوړيږي او بالآخره ټولنه په معين لوري روانوي.

- عامه ذهنيتونه په ټولنه کې د افرادو او ډلو د اړيکو له نخوړ د نظرياتو له بدلون او يو پر بل باندې د اغېزو پايله وي؛ او د عامه ذهنيتونو د موجوديت لپاره شرط دا دی چې د ټاکلي موضوع په اړه به د ټولنې د افرادو تر منځ اتفاق يا تضاد موجود وي، او د

اختلاف په صورت کي علني مناقشي او دلایل پکي ستر رول لوبوي او په پایله کي عامه ذهنیت په صحیح لور سوق کېدلای شي؛ نو له همدې کبله د بیان آزادي د ټولني د پرمختګ لپاره یو مهم او اساسی لامل ګڼل کېږي.

## ۲-۴- د عامه ذهنیتونو مرحلې

## او په هغو باندې اغېزناک عوامل:

### ۲-۴-۱ د عامه ذهنیتونو مرحلې:

عامه ذهنیت د یوې مشخصې موضوع...په اړه د پیل، تصادم، پیاوړتیا، پوخوالي، کمزورتیا او له منځه تګ مرحلې لري. د بېلګې په توګه لومړی د یوې سکالو یا موضوع...په اړه هېڅ مفکوره د ټولنوالو په ذهن کې نه وي د لومړي ځل لپاره د چا له خوا مطرح کېږي، چې همدې ته یې د پیل ټکی وایي. د دې مطرح شوې موضوع په اړه مخالف لیدلوري او نظریات رامنځ ته کېدل دغه ذهنیت د تصادم مرحلې ته رسوي که چېرته دغه موضوع د خلکو له عقایدو، منطق، غوښتنو...سره سمون درلود او د مقنع دلایلو او نظریاتو په پایله کې د خلکو منطق او ذهنیت ته لاره پیدا کړه نو د تغییر او بیا د پیاوړتیا مرحله یې پیل او ورځ په ورځ همدا مفکوره د هغوي په منځ کې خپرېږي او تقویه کېږي او بالآخره د پوخوالي په لور خپل ځان په ټولنه کې تلپاتې او یا اوږدمهاله ساتي. او که چېرته همدا سکالو د پیل یا مطرح کېدو له نقطې څخه وروسته د خلکو له عقایدو، منطق، غوښتنو...سره برابره نه وه نو د هغوي له نظریاتو...سره د تصادم په پړاو کې د کمزورتیا او بالآخره د له منځه تګ مرحلې ته ورځي او یا دا

چې هماغه پیاوړی او پوخ ذهنیت د یو نوي او غوره بدیل په منځ ته راتګ یا مطرح کېدو سره هغه پخوانی ذهنیت کمزوری او بلآخره له منځه ځي او پر ځای یې نوی بدیل د هغه ځای نیسي.

**۲-۴-۲- په عامه ذهنیتونو باندې د اغېزو عوامل:**

د عامه ذهنیتونو د سیر او حرکت په بېلابېلو مرحلو کې ځانګړي عوامل خپل ځانګړی رول او ارزښت لري چې په لاندې ډول به یې معرفي کړو:

**الف - فردي عوامل:** چې د انسان رواني حالت له ذهني تصویرونو، عقایدو او تمایلاتو څخه اغېزمن کیدای شي.

**ب - چاپېریالي عوامل:** لکه ټولنیزې، سیاسي او مذهبي ډلې، اقتصادي بنسټونه او داسې نورې فزیکي او بیولوژیکي عوامل اغیزمن بربېښي. چې د هغو له جملې څخه په ټولنیزه برخه کې کورنی، ښوونځی، پوهنتون، مذهب او د عامه اړیکو وسایل د عامه ذهنیتونو په جوړښت کې ارزښتناك رول لوبولای شي.

دا جوته شوه چې د عامه اړیکو وسایل یا رسنی د عامه ذهنیتونو د جوړښت په مرحله کې د ټولنیزو عواملو یو اغېزناك عامل ګڼل کېږي.

همدارنګه د عامه ذهنیتونو د بدلون او ثبات عوامل او اغېزناک لاملونه په لنډیز سره په لاندې ډول راغونډوو:

**د عامه ذهنیتونو د بدلون یا تحول په مرحله کې دغه عوامل اغېزې لري:** تعلیم او تربیه، د ټولنې چټك پرمختګ، ځلمیتوب، ودونه، د مور او پلار په وړاندې تمرد، د بېلابېلو ډلو ټپلو غړیتوب او د رهبرانو نظریات.

**او د عامه ذهنیتونو د ثبات یا ریښې زغلولو په مرحله کې هم بېلابېل اغیزناك عوامل رول لوبوي لکه:**

- **جهت یا لوری:** چې د یوې موضوع په اړه د یو شخص مثبت یا منفي نظر ټاکي.
- **وسعت یا پراخوالی:** په هره اندازه چې د یو فکر یا نظر لرونکي زیات وي په هماغه اندازه د نوموړي نظر پراخوالی ثابتوي او په عامه ذهنیتونو کې ریښې زغلوي.
- **شدت یا چټکوالی:** چې له یو نظر سره د ډېر موافقت او ډېر مخالفت تر منځ اندازه ټاکي چې دا اندازه د انسان په ذهنیت کې ریښې زغلوي او د ټینګښت حد ته رسېږي.
- **عمق یا ژوروالی:** چې دا نظر یا فکر تر کومې اندازې پورې د یوې ډلې یا ټولنې له معیارونو، اخلاقو، عقایدو او داسې نورو ارزښتونو سره برابري لري، د دې برابرۍ په تناسب نوموړې مفکوره یا نظر په ټولنه کې ژوروالی لري.

په عامه ذهنیتونو باندې پورتنې ټول اغېزناك عوامل په نورو فرعي عواملو باندې وېشل شوي دي چې د دې کتاب د اوږدوالي د مخنیوي له امله په هر یوه باندې په تفصیل سره لیکنه نه شو کولای خو د عامه اړیکو د وسایلو د رول په اړه دا مثال راوړو چې کله د دوه تنو ترمنځ یوه موضوع مطرح شي نو د یو عامه ذهنیت د پیل ټکی ګڼل کېږي، کله چې دا موضوع په بېلابېلو ځایونو کې یاده او خبرې اترې پرې وشي نو دا ذهنیت ورو ورو جوړښت مومي او یو شکل ځان ته غوره کوي له دې وروسته نوموړې موضوع د مفکرینو او پوهانو د بحث او څېړنو جوګه کېږي او د ډلو او حزبونو د مشرانو د پام او نظر څرګندولو سبب کېږي او بیا د رسنیو

وار رارسېږي چې موضوع تر څېړني لاندې ونيسي يا يې تغيير او يا يې تقويه کړي.

وينو چې د عامه ذهنيتونو سکالو(موضوع) که له هر لوري څخه تر څېړني لاندې ونيسو د څېړني کړی او مراحل مو د رسنيو په لور ورولي او د هغو رول پکي ارزښتناك جوتوي، خو که له يوې خوا رسنۍ د عامه ذهنيتونو په جوړښت او مسير ټاکلو کي ستره اغېزه لري له بلي خوا عامه ذهنيت په رسنيو باندې هم خپله اغېزه لرلای شي يا په بل عبارت داسي اغېزناك عوامل هم شته چې رسنيو ته ذهنيت او تګلورې ټاکي، چې په دوه برخو ويشل کېږي:

**الف- په رسنيو باندې د اغېزو کورني عوامل:** د امتياز خاوندان، مسؤول مديران، د کتونکې ډلي غړي، خبرجوړوونکي، انساني ځواکمني او د تکنولوژۍ پرمختګ د رسنيو کورني مؤثر عوامل ګڼل کېږي.

**ب- په رسنيو باندې د اغېزو باندني عوامل:** د فشار ډلې، د اعلانونو خاوندان، حکومتونه او مخاطبان ګڼل کېږي.

دا ټول هغه عوامل دي کوم چې کولای شي په رسنيو باندې د عامه ذهنيت د تګلوري په ټاکلو اغېزناك پرېوزي. له همدې کبله يو ځل بيا له دې بل اړخ څخه هم څرګنده شوه چې د عامه اړيکو وسايل بيا هم د عامه ذهنيتونو په جوړښت، بدلون او ثبات کي مهم رول لرلای شي.

**وروسته له دې چې عامه ذهنيتونه او پر هغو باندې د اغېزو عوامل مو وپېژندل اوس به په راتلونکي عنوان کي ستاسو پام دې ته راواړوو چې ذهن څنګه او په کومو واملو روښانېږي يا په بل عبارت د ذهن د روښانتيا لاملونه او لارې کومې دي:**

## ۲-۵- ذهن په څه او څنګه روښانېږي؟

ذهن په هر هغه څه روښانېږي چې خالق تعالی د هغه په انجام خپله خوښي څرګنده کړي وي او یا له هغه څيز څخه په ځان ژغورنې سره ذهن روښانېږي کوم چې خالق تعالی یې په انجام باندې ناراضه کېږي لکه چې خالق تعالی فرمایلي دي:«الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُمْ بِظُلْمٍ أُولَئِكَ لَهُمُ الْأَمْنُ وَهُمْ مُهْتَدُونَ»(۷) ژباړه: هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی او خپل ایمان یې په ظلم(شرک) باندې نه ده پوښلی، دغه کسان(چې خپل ایمان یې له ظلم څخه ساتلی دی) دوی لره امن دی او همدوی د سمې لارې موندونکي دي.

نو له دې مبارک آیت څخه په ډاګه څرګندېږي چې الله ج په وحدانیت او ربوبیت سره پېژندل او له شرک څخه ځان ژغورل د هدایت لاره پرانیـزي، ذهن روښانوي او د مخلوق له بنده ګۍ څخه انسان ژغوري.

او په دوهم پل کې د الله ج د کلام(قران کریم) د لارښوونو په رڼا کې د خپل خالق د فرمانونو منل او پلي کول د ذهن د روښانتیا بنسټیزه مرجع ده لکه په دې مبارکو آیاتونو کې چې الله ج فرمایلي دي: «يَهْدِي إِلَى الرُّشْدِ فَآمَنَّا بِهِ وَلَنْ نُشْرِكَ بِرَبِّنَا أَحَدًا»(۸) ژباړه: لارښوونه کوي د سمې لارې(ایمان، حق او روښانتیا) په لور، نو ایمان راوړ مونږ په دې(قرآن) باندې او هېڅ کله به شریک را نه وړو له خپل رب سره هېڅوک.

وینو چې په دې مبارک آیت کې هم دا شاهدي ویل شوې ده چې قرآن کریم د ذهنیتونو د روښانولی سرچینه ده او شرک راوړل په خدای

پاک باندې دغه روښانولي په تاريکيو او بدبختيو بدلوي. او په لاندې مبارک آيت کې النور ذات د خپل کلام په مقدمه يا لومړۍ ورقه کې د قرآن کريم د صحت په اړه پوره ډاډ او له هر راز نقص څخه يې د لرې والي زېرى راکوي

«ذَلِكَ الْكِتَابُ لَا رَيْبَ فِيهِ هُدًى لِلْمُتَّقِينَ» ([9]) ژباړه: دغه کتاب(قرآن) کې هېڅ شک نه شته په دې کې هدايت ده لپاره د متقيانو.

نو پورتني سوال ته (ذهن په څه او څنګه روښانېږي؟) داسې ځواب وړاندې کوو: ذهن په وحدانيت او معبوديت سره د الله ج په قبلولو او د قرآن کريم په پلي کولو روښانېږي. چې د رسول صلى الله عليه و سلم متابعت هم په دې کې شاملېږي ځکه دا د قرآن لارښوونه ده چې:«وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا»([10]) ژباړه: هغه څه چې تاسو ته يې رسول(د خداى) درکوي هغه واخلئ او له هغه مو چې منع کوي، ځان ترې وژغورئ!. همدارنګه په دې مبارک آيت کې بيا هم تأکيد کوي چې:«يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ»([11]) ژباړه: اې هغو کسانو چې ايمان يې راوړى دى! اطاعت د الله او اطاعت د رسول وکړئ. نو جوته شوه چې قرآن او احاديث د روښانولی سرچينې دي.

نو د هغو لارو، وسيلو او عادتونو بېلګې کومې چې د ذهن د روښانولی سبب کېږي او د قرآن او احاديثو په واسطه سره خالق تعالى او د هغه رسول ورباندې تأکيد کړى له لاندې موضوعاتو څخه عبارت دي: يوازې د الله بنده ګي کول او د نورو له بندګيو څخه آزادي، علم، په رښتينې بنه د الله او رسول اطاعت، حقيقت، عدالت، له شک او ترديد څخه نجات، صداقت، د هر چا د حقوقو پېژندل او پرځاى کول، له چاپېريال سره مناسبې اړيکې ساتل، له فساد، فحشاء اونورو بديو څخه ځان ژغورل، د الله

ج د میني رڼا په خپل زړه او افکارو یا ذهن کې روښانه ساتل او د همدې
میني په رڼا کې خپله لاره موندل او په ټولیزه توګه ویلای شو چې په
رښتیني ښه د الله هر امر او نهی د زړه له کومې په ډېره مینه تطبیقول، د
انسان ذهن روښانه، زړه یې ډاډه او په دواړو کونو کې یې بریالی ساتي.

**۲-۶- د عامه ذهنیتونو د روښانولی مرجَع:**

په اوسني عصر کې د عامه ذهنیتونو د روښانولی سرچینې:
مطبوعات، کتابونه او د معلوماتو بانکونه ګڼل کېږي چې علیم او حکیم ذات
بشریت ته په آسماني صحیفو کې د مطبوعاتو او جریدو درسونه، په
آسماني کتابونو کې د کتاب لیکنو او ساتلو درسونه، او د انبیاوو علیهم
السلام او اولیاوو کرامو له روحي ارتباطاتو او پیغام رسولو او اخیستلو
څخه د انټرنیټ درسونه ورښودلي او ورښیي. د ټولو اړیکتیایي وسایلو او
عصري تکنالوژۍ په منځ ته راتګ سره په نړۍ کې د الکترونیاتو انقلاب
را پیښ شو چې ټوله دنیا یې سره وتړله او نړۍ ته یې د یو کلي نوم ورپه
برخه کړ د دې تکنولوژۍ په واسطه سره دومره معلومات راټول، خپاره او
وساتل شول چې د«معلوماتو بانکونه» یې  په داسې قوت سره جوړ کړل
چې نړۍ ورته حیرانه او د عامه ذهنیتونو د مسیر او د پرمختګ او
وروسته پاتې والي د کاروان سرکښي یې په خپل واک کې واخیسته او ددې
آیت شریف تفسیر یې مونږ ته ښه روښانه کړ چې په هغه کې الله ج د خپل
علم او معلوماتو وسعت په یو مثال کې داسې څرګندوي او د معلوماتو د
حفظ او ساتلو ستره مرجع مونږ ته توضیح کوي:«قُلْ لَوْ كَانَ الْبَحْرُ مِدَادًا
لِكَلِمَاتِ رَبِّي لَنَفِدَ الْبَحْرُ قَبْلَ أَنْ تَنْفَدَ كَلِمَاتُ رَبِّي وَلَوْ جِئْنَا بِمِثْلِهِ مَدَدًا»(۱۲).
ژباړه: ووایه(اې محمده) که چېرته بحر زما د رب د معلوماتو لپاره رنګ
وای نو خلاص شوی به وای، او که په مثل د هغو بحرونو نور رنګ هم

راوړل شي نو د خدای پاک معلومات به خلاص نه شي. او همدا مفهوم عليم ذات په يو بل مبارک آيت کي داسي انځوروي:«وَلَوْ أَنَّمَا فِي الْأَرْضِ مِنْ شَجَرَةٍ أَقْلَامٌ وَالْبَحْرُ يَمُدُّهُ مِنْ بَعْدِهِ سَبْعَةُ أَبْحُرٍ مَا نَفِدَتْ كَلِمَاتُ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ»(١٣). ژباړه: په تحقيق سره که چېرته د ځمکي وني قلمونه شي او بحر يي رنګ شي، وروسته له هغې اوه نور بحرونه هم ورسره شي نو د خدای پاك(ج) کلمات يا معلومات او علم به ختم نه شي، په تحقيق سره الله ج په هر څه باندي غالب او حکمت والا ذات دی.

له دي مبارکو آياتونو څخه د الله تعالی د معلوماتو وسعت او د روښانولی اصلي مرجع چي په معلوماتو کي نغښتي ده جوتيږي. د نړئ پرمختګ او د دې عصر پرمختللو پوهانو دا ثابته کړې چي: اوس ماديات او توره حکومت نه شي کولای بلکي معلومات پر هېوادونو، ټوله نړئ او عامه ذهنيتونو حکومت کوي لکه يو لبناني فروفيسور او د کويت د پوهنتون استاد دکتور نبيل جردي چي دې موضوع ته د معلوماتو انقلاب يا طوفان لقب ورکړی دی نوموړی په عربي ژبه«ثورة الإتصال و المجتمع» يعنی د اړيکو طوفان يا انقلاب او ټولني، تر عنوان لاندي ليکي چي ژباړه يي په لاندي ډول راوړو:

«پوهه او معلومات اوس هغه رول لوبوي کوم چي پخوا آلاتو او وسايلو د صنعت په بدلون يا انقلاب کي لوباوه، بلکي دا ترې ډېر پياوړی برېښي، ځکه چي دا ذهنيتونو ته خطاب کوي او د ارزښتناکو هوډونو په نيولو کي برخه اخلي نو له همدې کبله يو نوی انقلاب يا طوفان جوړوي چي د پوهي يا معلوماتو د انقلاب يا طوفان په نوم يي نومولای شو.»(١٤)

دا ثابته شوه چي د روښانولی ستره مرجع معلومات دي او د معلوماتو ستره مرجع عليم ذات دی او همدا معلومات دي چي د روښانولی

تهدابونه، مانی او ښکلاوې جوړوي. نو ټوله روښنايي او روښانولي هم له هغه عليم او حکيم ذات سره ده کوم چې ټول او کامل معلومات ورسره دي او ستره مرجَع يې هم، همدغه ذات دی؛ لکه چې په دې مبارک آيت کې فرمايي:«اللَّهُ نُورُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ مَثَلُ نُورِهِ كَمِشْكَاةٍ فِيهَا مِصْبَاحٌ الْمِصْبَاحُ فِي زُجَاجَةٍ الزُّجَاجَةُ كَأَنَّهَا كَوْكَبٌ دُرِّيٌّ يُوقَدُ مِنْ شَجَرَةٍ مُبَارَكَةٍ زَيْتُونَةٍ لَا شَرْقِيَّةٍ وَلَا غَرْبِيَّةٍ يَكَادُ زَيْتُهَا يُضِيءُ وَلَوْ لَمْ تَمْسَسْهُ نَارٌ نُورٌ عَلَى نُورٍ يَهْدِي اللَّهُ لِنُورِهِ مَنْ يَشَاءُ وَيَضْرِبُ اللَّهُ الْأَمْثَالَ لِلنَّاسِ وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيم»(١٥) د دغه مبارک آيت د قوي تعبير په تفسير او تفهيم کې اروابښاد عبدالهادي خان ترجمان د ١٣٠٨هـ ل کال د«انيس» جريدې په ۶۶ ګڼه کې د(اسلام چرا نازل شد) تر عنوان لاندې په زړه پورې مقاله ليکلې او له اسلام څخه دمخه په بشري ټولنه کې تاريکيو، بد اخلاقيو، مفاسدو، ظلمونو، انسان وژلو او داسې نورو له انسانيت څخه لرې اعمالو ته ګوته نيسي او د اسلام د مبارك دين په خپرېدو يې د هغو ټولو مفاسدو د ټغر د ټولېدو څرګندونه کړې او پر ځای يې په عامه ذهنيتونو کې د اسلام د نور د خپرېدو وړانګې منعکس کړي دي، نوموړي د خپلې مقالې په ترڅ کې د پورتني مبارک آيت مفهوم داسې وړاندې کړی:«الله نور است که به باشنده گان ارض و السموات هدايت ميدهد- و هر کسی از مخلوق او که صاحب هدايت شد اين نعمت عظيم به او از طرف حق رسيد و مثال نور هدايت او را اينطور بفهميد که يک طاقيست که در آن يک چراغ و آن چراغ در بين يک قنديل و آن قنديل بطوری صاف و شفاف است مثل يک ستاره درخشيده، و آن چراغ از روغن مبارک زيتون روشن می شود که نه آن را باد شمال و نه باد جنوب گل ميکند، خود بخود روشن و چون روشن شد نور، علی نور است و چون حضرت احديت نور هدايت را در مؤمن عطاء

میفرماید انشراح آن برای قبول حق روزمره زیاد شده میرود و هرکسی را که میخواهد توفیق آن نور را به او عطا میفرماید.»([١٦])

دا حقیقت بیا هم په وضاحت سره جوت شو چې: ټوله روښنايي او معلومات له النور او علیم ذات سره دي نو باید روښنايي د همغه ذات له ارشاداتو څخه تر لاسه او ذهنیتونه پرې روښانه شي؛ لکه چې په دې مبارک آیت کې فرمايي:«قَدْ جَاءَكُمْ مِنَ اللَّهِ نُورٌ وَكِتَابٌ مُبِينٌ»([١٧]) ژباړه: په تحقیق سره راغی تاسو ته د الله تعالی له لوري څخه نور(روښنايي، رڼا) او روښانه یا څرګند کتاب(قران کریم).

په دې آیاتونو کې ښه جوتیږي چې د روښانولی مرجع الله ج دی او یواځې د هغه په متابعت انسانان له تیارو څخه ژغورل کیدای شي:«اللَّهُ وَلِيُّ الَّذِينَ آمَنُوا يُخْرِجُهُمْ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ وَالَّذِينَ كَفَرُوا أَوْلِيَاؤُهُمُ الطَّاغُوتُ يُخْرِجُونَهُمْ مِنَ النُّورِ إِلَى الظُّلُمَاتِ أُولَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ»([١٨]) یعنې: الله ج د مؤمنانو دوست دی او هغوی له تیارو څخه روښنانائیو ته باسي او د کافرانو دوستان شیطانان دي چې له روښنائیو څخه یې تیارو ته باسي، دوي خاوندان د دوزخ دي، تل به پکې وي.

«قَدْ جَاءَكُمْ مِنَ اللَّهِ نُورٌ وَكِتَابٌ مُبِينٌ؛ يَهْدِي بِهِ اللَّهُ مَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَهُ سُبُلَ السَّلَامِ وَيُخْرِجُهُمْ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ بِإِذْنِهِ وَيَهْدِيهِمْ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ»([١٩]) ژباړه: په تحقیق سره درغلې ده تاسو ته روښنايي او څرګند کتاب(قرآن)، الله ج هدایت کوي په دې سره هغه چا ته چې د الله د خوښی تابع وي د سلامتی لارو ته او په خپل حکم سره یې له تیارو څخه د رڼا په لور باسي او سمې لارې ته یې هدایت کوي.

ثابته شوه چې النور ذات د روښانولی اصلي مرجَع او قرآن کریم یې لار ده، نو پکار ده چې خپل ذهنیت او د ټولنې عامه ذهنیتونه په همدې

مرجع روښانه کړو کومه چې قرآن کريم يې لار او رسول صلی الله عليه و سلم يې لارښود دی.

## دريم څپرکی

## د عامه ذهنيتونو د تاريکۍ سرچينې، او په قرآن کريم کې د هغو درملنه

د تېر څپرکي د مطالعاتو او پلټنو په رڼا کې مو د روښانولۍ اصلي مرجع وپېژندله چې د معلوماتو ستره مرجع عليم ذات دی او د روښانولۍ لاره يې په قرآن کريم کې مونږ ته راښودلې او روښانه کړې ده؛ اوس نو غواړو په قرآن کريم کې د عامه ذهنيتونو د روښانولۍ لارې او بېلګې وڅېړو او د لوستونکو لپاره د لا ښه جوتولو او څرګندولو په موخه غواړم له يو بل باب يا دروازې څخه دې سکالو يا موضوع ته ورننوزم، هغه دا چې د څېړنې په دې برخه کې به د عامه ذهنيتونو په تاريکۍ او د هغو په سرچينو ورځير شو او بيا به يې درملنه يا حل لاره په قرآن کريم کې ولټوو، ځکه هر څه د هغو پر ضد يا مقابل ښه پېژندل کېږي، چې په لاندې ډول به يې د ځينو سرچينو بېلګې ښکاره او بيا به يې په قرآن کريم کې درملنه يا د روښانولۍ لارې او لارښوونې څرګندې کړو:

### ۳-۱- جهل او ناپوهي، او په قرآن کريم کې د هغو درملنه:

جهالت د حکمت ضد دی چې څېړنوال محمد شريف پاکرأى يې داسې راپېژني:«عبارتست از: انكار خدا؛ تمرد در برابر او تعالی، انحراف از مسیر فطرت و انسانیت؛ بی اعتنائي به ارزشهای معنوی و فضایل اخلاقی و مفتخر به اصالت حيوانی.»([۲۰]) او ناپوهي د پوهي ضد ده؛ چې دواړه(جهل او ناپوهي) د عامه ذهنيتونو د تيارو بنسټيزې سرچينې دي؛ د هرې ټولنې په افكارو كې چې د دې زهرجنو چينو ويالې رواني او خپرې شي هلته به د حكمت او پوهې رڼې چينې خړې او زرنې شي، د افرادو ذهنيتونه به يې د تاريكيو په موجونو او اوهامو كې بې درايته قدم اخلي او ځانونه به د هلاكت كندو ته وراچوي. چې ښه بېلګه يې له اسلام څخه دمخه د جاهليت دوره ده چې د بشريت پر وړاندې تر ټولو كرغېړن، تور او شرمونكي اعمال پكې انجام شوي كوم چې تاريخ پرې ګواه دى. خو عليم ذات د اسلام د مبارک دين په روښنايي سره خپل بنده ګان له دې تيارو څخه ژغوري، د علم حصول ورباندې فرض ګرځوي؛ ناپوهان او جاهلان له ړندو سره ورته كوي او د لا ځيروالى په موخه د سوال په بڼه فرمايي:«هَلْ يَسْتَوِي الْأَعْمَى وَالْبَصِيرُ أَفَلَا تَتَفَكَّرُونَ»([۲۱]) ژباړه: آيا ړانده له ليدونكو سره برابر دي؟ آيا تاسو تفكر نه كوئ؟. او په دې بل آيت كې جهل او ناپوهي نوره هم ښه رابښيي او هغه تيارو ته چې د روښانتيا او رڼوالي ضد دي ورته كوي خو علم او پوهې ته يې د «نور» يا رڼا كلمه كارولې چې د روښنايي منبع يا سرچينه ده:«هَلْ يَسْتَوِي الْأَعْمَى وَالْبَصِيرُ أَمْ هَلْ تَسْتَوِي الظُّلُمَاتُ وَالنُّور»([۲۲]) ژباړه: آيا ړانده او ليدونكي سره برابر دي؟ يا آيا تيارې او روښنايي سره برابرې دي؟. او په دې مبارک آيت كې په ډاګه فرمايي چې:«هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُون»([۲۳]) ژباړه: آيا برابر دي هغه كسان چې پوهېږی له هغو كسانو سره چې نه پوهېږي؟.

نو په داګه شوه چې ناپوهي تاريکي ده، ناپوهي ړوندوالی ده او ناپوهي له پوهي سره ستر توپير لري. نو قرآن کريم له دې نا خوالو څخه د خلاصون په موخه علم په هر مسلمان فرض ګرځولی دی. او د ناپوهی بېلابېل اړخونه انسانان له بېلابېلو ستونزو سره مخ کوي چې په لاندې ډول به يې وړاندې کړو:

- **۳-۱-۱ د ځان په اړه ناپوهي او په قرآن کريم کې يې**

**درملنه:** دا د انسان لپاره ستره تاريکي او د اوهامو دروغجنه دنيا جوړوي چې د ټل لپاره انسان په خپل اصل او نسب پسې سرګردانه او لالهانده وي؛ ډېر هغه انسانان چې د خپل ځان او خلقت په اړه ناپوهان او جاهلان دي نو په داسې تاريکو وهمونو کې ورک شوي دي چې کله ځان د شادي بچی ګڼي او کله يې د کانو بوټو او ونو په څېر بې ارزښته او بې مفهومه ګڼي، خو خالق تعالی انسان ته د هغه اصل او نسب ورپېژني، وعدې يې وريادوي او د اصلي دندې په اړه يې ذهن روښانوي:«وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِي آدَمَ مِنْ ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَأَشْهَدَهُمْ عَلَى أَنْفُسِهِمْ أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا بَلَى شَهِدْنَا أَنْ تَقُولُوا يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّا كُنَّا عَنْ هَذَا غَافِلِينَ»([٢٤]) ژباړه: او ياد کړه(اې محمده) هغه وخت چې واخيسته(وعده) رب ستا له اولادې د آدم عليه السلام څخه له شاګانو د دوی څخه اولادې د دوی، او شاهدان يې کړل دوی پر خپلو ځانونو باندې (او وفرمايل الله ج دوی ته): آيا زه ستاسو رب نه يم؟! ټولو وويل: ولې نه(ته زمونږه رب يې)، ګواه کړل

مونږ(په ربوبیت د الله، له دې جهته) چې و(نه) وایئ تاسو په ورځ د قیامت کې چې بېشکه مونږ وو له دغه(توحیده) غافلان(بې خبران).

او په دې بل مبارک آیت کې، معبود حقیقی، انسان ته د هغه اصلي دنده چې عبادت ده په ډاګه اعلانوي:«وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ»(٢٥) ژباړه: او مونږه نه دي پیدا کړي انسانان او پیریان مګر د عبادت لپاره. نو انسان باید خپل ټول اعمال، ویناوې او افکار په همدې اډانه یا چوکاټ کې تنظیم کړي او ټول د الله د رضا په موخه انجام کړي د غیرالله موخه پکې شریکه نه کړي، نو په دې شکل به د الله خوښي حاصله کړای شي؛ انسان د همدې نیت په تنظیمولو سره د خپلو اعمالو ماهیت ښه پېژندلای شي، د غیرالله له قید او بند څخه یې آزادوي او ذهن یې د خپلو ټولو اعمالو، ویناوو او افکارو په اړه روښانوي.

په دې مبارک آیت کې خالق تعالی له یوې خوا دا څرګندوي چې انسان د آدم علیه السلام اولاده(پیغمبرزاده) ده او له بلې خوا انسان ته د هغه مادي او معنوي فضیلتونه، آسوده ګی، سوداګري، پرمختګونه، پاکیزه او ګټور خوراکونه او داسې نور فضایل بیانوي ترڅو انسان خپل مادي او معنوي ارزښت د فضایلو په رڼا کې روښانه ووینې:«وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِي آدَمَ وَحَمَلْنَاهُمْ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَرَزَقْنَاهُمْ مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَفَضَّلْنَاهُمْ عَلَى كَثِيرٍ مِمَّنْ خَلَقْنَا تَفْضِيلًا»(٢٦) ژباړه: او خامخا په تحقیق سره مونږ ډېر عزت ورکړی دی اولادې د آدم علیه السلام ته او سپاره کړي مو دي دوی پر مرکباتو باندې په وچه او بحر کې او روزي مو ورکړې ده دوی

ته له پاکيزه ۉ شيانو څخه او غوره کړي مو دي دوی پر ډېرو هغو چې پيدا کړي مو دي، له جهته د مرتبې او فضيلت.

نو له پورتنيو دلايلو او لارښوونو څخه په ټوله معنی جوته شوه چې قرآن کريم انسان ته د خپل ځان د هر اړخيزې پېژندګلوۍ لپاره روښانه لارښود دی.

- **۳-۱-۲ د خالق په اړه ناپوهي او په قرآن کريم کې يې**

**درملنه:** د خالق په اړه ناپوهي د انسان ستره لارورکي او د اوهامو په تاريکيو کې د ذهنيتونو د غملړلي ګودال سرچينه ده؛ که د يو انسان، ګران پلار يا مور، چې د هغه د خلقت يو سبب يې ګڼلای شو د جګړو او يا نورو ستونزو په اثر ترې لا درکه شوي وي نو دی به خپل ټول عمر د هغه په لټه کې وي او که څوک د هغوی په اړه څه پته ورکړي نو په ټول کوښښ هغه تن سره خپلې اړيکې ټينګوي تر څو يې پوره پته ترلاسه او خپل مور او پلار پيدا کړي؛ نو د هغه چا حال او ګمراهي به څومره سخته وي کوم چې خپل اصلي خالق او د هر نعمت وربښونکی يې ورک کړی وي؛ هغه به په څومره غمونو، نا امېديو او د هغه ستر ذات د پيدا کولو په سوچونو کې ډوب وي کوم چې دی او هر څه يې پيدا کړي دي؟! مهربان ذات د بشر ذهنيتونو ته له دې سترې غميزې څخه د نجات لپاره دا مبارک آيت بيانوي او هر انسان له دې سوچونو او غمونو څخه راوباسي او د خپل خالق په اړه يې ذهنيتونه روښانوي:«وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ لَا إِلَٰهَ إِلَّا

هُوَ الرَّحْمَنُ الرَّحِيمُ»([۲۷]) ژباړه: او معبود د تاسو يو معبود دی، نشته بل معبود مګر همدی رحمن او رحيم(مهربان) ذات.

همداډول د اخلاص سورت نور هم د خپل خالق په اړه د انسان ذهن روښانوي او انسان له اوهامو څخه ژغوري: «قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ؛ اللَّهُ الصَّمَدُ؛ لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ؛ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُوًا أَحَدٌ»([۲۸]) ژباړه: ووايه(اې محمده) چې الله يو دی، الله بې نيازه دی، نه له هغه څخه څوک زېږېدلي دي او نه هغه له چا زېږېدلی دی، او نه هېڅوک د هغه په څېر شته.

نو جوته شوه چې قرآن کريم انسان ته د هغه د خالق، رازق او د هر نعمت د وربښونکي د پېژندګلوئ او د هغه د حق د اداء کولو په اړه غوره لارښود او د ذهنيتونو رڼا ده.

- **۳-۱-۳- د نهايي مصير په اړه ناپوهي او په قرآن کريم کې يې درملنه:** د خپل انجام او فرجام په اړه د انسان ناپوهي د عامه ذهنيتونو د تيارو، نا امېديو، ظلمونو او داسې نورو منفي ذهنيتونو زهرجنه چينه ده چې خالق تعالی يې د دې مبارک آيت په بيانولو سره وچوي او د عامه ذهنيتونو د روښانولی امېدونه تاند ساتي:«كَيْفَ تَكْفُرُونَ بِاللَّهِ وَكُنْتُمْ أَمْوَاتًا فَأَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ»([۲۹]) ژباړه: څرنګه تاسو په الله ج باندې کافران کېږئ! په داسې حال کې چې تاسو مړه وئ نو راژوندي يې کړئ، بيا به تاسو مړه کړي او بيا به مو راژوندي کړي، بيا به د هغه(الله ج) په لور ورګرځئ.

او په دې مبارک آیت کې الله ج د انسانانو د انجام په اړه نور هم د هغوی ذهنیتونه روښانوي او د هر عمل د حساب خبر ورکوي چې په دې توګه له بشري ژوند څخه د هرې ناوړې او ناحقې ترټکی ټولېږي، ځکه هر یو يې له ځواب ورکولو څخه په وېره کې وي:« فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ؛ وَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُ»(۳۰) ژباړه: نو هغه څوک چې په اندازې د یوې ذرې نیکي کوي، و به ویني(جزاء د هغې) او هغه څوک چې په اندازې د یوې ذرې بدي کوي. و به ویني(جزاء د هغې).

نو څرګنده شوه چې قرآن کریم د انسان د انجام او فرجام په اړه د هغه ذهن روښانوي د حساب او کتاب وعده ورکوي او هغوي په خپل ژوند کې نېکیو ته بلي او له هر راز بدیو، بې عدالتیو او حق تلفیو څخه يې ژغوري.

- **۳-۱-۴- د عصری علومو، تمدن او نړۍ په اړه ناپوهي او په قرآن کریم کې يې درملنه:** له عصري او ساینسي علومو پرمختګونو او نړۍ څخه ناخبري او ناپوهي هم د تیارو او وروسته پاتې کېدو یوه سرچینه ده چې بیا هم قرآن کریم ټول بشریت د خپلو ارشاداتو په واسطه سره انسان له دې تیارو څخه ژغوري او د نړۍ د بېلابېلو علمونو په ترلاسه کولو کې يې ګړندۍ کوي او د هغو پتې ورکوي:«أَلَمْ تَرَوْا أَنَّ اللَّهَ سَخَّرَ لَكُمْ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَأَسْبَغَ عَلَيْكُمْ نِعَمَهُ ظَاهِرَةً وَبَاطِنَةً، وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُجَادِلُ فِي اللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَلَا هُدًى وَلَا كِتَابٍ مُنِيرٍ»(۳۱) ژباړه:آیا نه وینئ تاسو چې په

تحقيق سره الله ج ګرځولي دي د تاسو لپاره هر هغه څه چې په آسمانونو کې دي او هر هغه څه چې په ځمکه کې دي او پوره کړي يې دي پر تاسو باندې خپل ظاهري او باطني نعمتونه، او ځينې له خلکو څخه دي چې جګړې کوي په لاره د خدای پاک کې بې له علم څخه او بې له سمې لارې او ښکاره کتاب څخه.

او د دې بل آيت شريف له محتوی څخه بيا هم انسان دې ته هڅوي چې له هر شي څخه د ګټې اخيستلو په لټه کې شي! ځکه هر څه د دوی لپاره پيدا شوي دي:«هُوَ الَّذِي خَلَقَ لَكُمْ مَا فِي الْأَرْض جَمِيعًا»([۳۲]) يعنې الله ج هغه ذات دی چې پيدا کړي يې دي د تاسو لپاره ټول هغه څه چې په ځمکه کې دي.

او په دې مبارک آيت کې انسانان او پېريان پر فضا باندې د مسلط کېدو، سياراتو ته د ختلو او فضا ته د سپوږمکيو د لېږدولو...او د داسې نورو فضائياتو او علمونو په ترلاسه کولو پوهوي: «يَا مَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ إِنِ اسْتَطَعْتُمْ أَنْ تَنْفُذُوا مِنْ أَقْطَارِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ فَانْفُذُوا لَا تَنْفُذُونَ إِلَّا بِسُلْطَانٍ»([۳۳]) ژباړه: ای قوم د انسانانو او پېريانو! که کولای شئ چې د آسمانونو او ځمکې له څنډو څخه ووځئ، نو ووځئ؛ نه شئ بهر کېدلای مګر په قوت سره.

او په بل مبارك آيت کې خالق تعالی د ځمکې او آسمانونو له نورو شيانو څخه د اوسپنې نعمت ته يوه ځانګړې پاملرنه کوي او د دې عنصر قوت، صلابت او ګټو ته زمونږ پام ور اړوي چې د ژورناليزم د وسايلو په جوړولو، کارولو، چاپولو، ليږدولو، خپرولو، ليدلو، اوريدلو، ثبتولو او داسې نورو برخو کې هم ترې د پام وړ ګټه اخيستل کېږي او په مجموع کې د ټولنې د بېلابېلو ستونزو د حل په موخه

کارول کیږي او ټولنه ورته ډېره زیاته اړتیا لري:«وَأَنْزَلْنَا الْحَدِيدَ فِيهِ بَأْسٌ شَدِيدٌ وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ»([٣٤]) ژباړه: مونږه رالیږلی ده اوسپنه، چې په دې کې سخته جګړه- ډېره پیاوړتیا او د خلکو لپاره ګټې دي.

او په دې مبارک آیت کې انسانانو ته له خپلو لاربښوونو وروسته د پند اخیستلو توصیه کوي تر څو انسانان د الله ج له لاربښوونو څخه ځانونو ته د بېلابېلو علمونو لارې پرانیزي او په واسطه یې خپل دواړه ژوندونه هوسا او بریالي کړي:«وَهَذَا صِرَاطُ رَبِّكَ مُسْتَقِيمًا، قَدْ فَصَّلْنَا الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَذَّكَّرُونَ»([٣٥]) ژباړه: او دا(قرآن) مستقیمه لاره د رب ستا ده، په تحقیق سره بیان کړي دي مونږه خپل آیاتونه لپاره د هغه قوم چې پند اخلي.

او په دې مبارک آیت کې الله تعالی مونږ ته د ځمکې د مخ او تَل له خزانو څخه د ګټې اخیستو، سیاحت یا ګرځېدو، کښت او تجارت لارې راښیي:«هُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ ذَلُولًا فَامْشُوا فِي مَنَاكِبِهَا وَكُلُوا مِنْ رِزْقِهِ وَإِلَيْهِ النُّشُورُ»([٣٦]) ژباړه: هغه داسې ذات دی چې تاسو ته یې ځمکه رام کړې ده، نو د هغې پر اوږو باندې وګرځئ او له رزق څخه یې وخورئ او هغه ته ورګرځېدونکی یاست.

همدا راز په دې مبارک آیت کې د ځمکې او آسمانونو کائنات د انسان د خدمت او ګټو لپاره ګڼي او د هغو په اړه انسان تفکر ته رابولي چې په هر څه کې تفکر کول بالآخره انسان د هغو شیانو په اړه د ګټو لارو چارو او ارزښت ته ځیر کوي، د کائناتو او نړۍ په اړه یې ذهن روښانوي او په عصري علومو یې پوهوي:«وَسَخَّرَ لَكُم مَّا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الأرضِ جَمِيعاً مِّنهُ، إنَّ فِى ذٰلِکَ لأٰيٰتٍ لِّقَومٍ يَتَفَكَّرُونَ.»([٣٧]) ژباړه: او مسخر کړي دي الله ج تاسو ته ټول هغه څه

چې په آسمانونو او ځمکې کې دي، په یقین سره چې دې عملیې کې نښې(عبرتونه، علایم د سوکالۍ اوګټې) دي لپاره د هغه قوم چې فکر کوي(د خالق تعالی د عظمت په ښه پېژندلو او له دې شیانو څخه د ګټې اخیستنې په لارو کې).

نو جوته شوه چې الله ج په قرآن کریم کې تر کومه حده انسان ته د پرمختګونو او عصري علومو پتې یا آدرسونه ورکړي او د ترلاسه کولو لاره یې ورته څومره پرانیستې او روښانه کړې ده!

- **۳-۱-۵- د عامه اړیکو، او اطلاعاتو په اړه ناپوهي او په قرآن کریم کې یې درملنه:** دا هم د ذهن د تیارو بله ستره مرجع ده چې د اسلام د دین د لارښوونو په واسطه سره په څرګنده درمل او د ذهنیتونو د روښانولی جوګه کېږي؛ له هر څه وړاندې د بهرنیو اړیکو او نړیوال سیاست په اړه اسلامي ټولنې ته درس ورکوي: «وَلَنْ تَرْضَى عَنْكَ الْيَهُودُ وَلَا النَّصَارَى حَتَّى تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ، قُلْ إِنَّ هُدَى اللَّهِ هُوَ الْهُدَى وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَاءَهُمْ بَعْدَ الَّذِي جَاءَكَ مِنَ الْعِلْمِ مَا لَكَ مِنَ اللَّهِ مِنْ وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ»([۳۸]): ژباړه: او له سره به راضي نه شي له تا څخه(اې محمده) یهودیان او نصرانیان تر هغو چې د دوی د دین متابعت وکړې، ووایه چې په تحقیق سره لاره ښودل د خدای پاک همدغه هدایت ده، او که متابعت وکړې ته د خواهشاتو د دوی وروسته له دې چې راغی تاسو ته(هدایت) له علم(د خدای پاک) څخه، نه به وي تا لره له خدای پاک څخه کوم دوست او مددګار.

او دا مبارک آیت د بشریت تر منځ د اړیکو د ټینګښت غوره دلیل ده:«فَآتِ ذَا الْقُرْبَى حَقَّهُ وَالْمِسْكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ ذَلِكَ خَيْرٌ لِلَّذِينَ يُرِيدُونَ وَجْهَ اللَّهِ وَأُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ»([٣٩]) ژباړه: نو ورکړئ خپلوانو، مسکینانو او مسافرانو یا مېلمونو ته د هغوی حق(په مالونو او اعمالو کې)، دا(عمل) غوره ده د هغو کسانو لپاره چې د الله تعالی خوښې غواړي او همدوی بریالي دي.

په دې مبارک آیت کې خالق تعالی د دې په څنګ کې چې انسان خپل اصل او نسب ته متوجه کوي- چې هغه یو شهزاده نه بلکې له هغې مرتبې څخه هم لوړ، یو پیغمبرزاده دی- د«تعارف» یا پېژندګلوئ او د اړیکو د ساتلو ارزښت ته یې هم پام وراړوي:«يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُمْ مِنْ ذَكَرٍ وَأُنْثَى وَجَعَلْنَاكُمْ شُعُوبًا وَقَبَائِلَ لِتَعَارَفُوا إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ»([٤٠]) ژباړه: ای خلکو بېشکه مونږ پيدا کړي یاستئ تاسې له یو سړي او یوې ښځې(آدم علیه السلام او بي بي حوا) څخه، او بیا مو ډلې ډلې او قبیلې قبیلې ګرځولي یاست لپاره د دې چې سره وپېژنئ، بېشکه غوره ستاسو په نزد د الله ج متقي تر د ستاسو دی، بېشکه الله تعالی ښه پوه او خبردار دی(په هر څه باندې).

خالق تعالی په پورتني آیت شریف کې د انسانانو تر منځ د پېژندګلوئ او اړیکو د ټرلو او ساتلو په اړه بشریت ته ستر درس ورکوي تر څو د همدې اړیکو پر تارونو یو بل ته د الله دین ورسوي او د دواړو ژوندونو د آسوده ګیو پرمختګونو او بریالیتوبونو لارې او نظریات یو له بل سره شریک کړي. همدارنګه خالق تعالی د دې اړیکو د ریښو، تارونو او ښاخونو په اوبدل شوو او ټړل شوو شبکو

کې غوره کس هغه ګڼلی چې هغه د اړیکو په دې ارتې نړۍ کې له خدایه ووېرېږي یعنې له خپل ځان، خالق او چاپېریال سره په اړیکو کې له خدایه ډار ولري یا په بل عبارت خپل افکار او ذهنیت سالم کړي، له خپل خالق سره د الله د فرمان مطابق اړیکه ټینګه کړي او له چاپېریال(انسان، حیوان، نبات، جماد، غاز...) سره هم خپله اړیکه د فساد پر بنسټ نه بلکه د صلاح او اصلاح پر بنسټ ټینګه کړي. د دې آیت شریف له وروستۍ جملې څخه مونږ ته دا درس هم راکول کېږي چې په اړیکو کې باید وړتیا او غوره انساني سلوکو(تقوی) ته ارزښت ورکړل شي نه مجرد پېژندګلوۍ ته؛ لکه خالق تعالی ته په نږدېوالي کې چې د تقوی اصل ارزښت لري نه ښکلا او تنه.

او په دې مبارک آیت کې الله تعالی مونږ ته د نورو وګړو له حال او احوال څخه د خبرېدو او له هغو څخه د پند اخیستلو امر کوي او له دروغ تړلو څخه مو په شدت سره منع کوي، ځکه درواغ د اړیکو د خرابوالي ستر لامل جوړوي، که دا اړیکې له خپل خالق سره وي او یا د هغه له مخلوق سره: «قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِكُمْ سُنَنٌ فَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَانْظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ»([٤١]). ژباړه: په تحقیق سره تېرې شوي دي مخکې له تاسو څخه ډېرې حادثې، نو وګرځئ پر ځمکه او وګورئ چې څرنګه و عاقبت د دروغو تړونکو(په خپلو رسولانو باندې).

او په دې مبارک آیت کې خبیر ذات مونږ ته د بشري ټولنې د اړیکو د نه خرابېدو لپاره د یوبل له حال او خبرونو څخه د خبرېدلو په وخت کې مونږ ته خبري ارزښتونه راپېژني چې عبارت له صحت او دقت یا رښتینولی او ځیرنې څخه دي ترڅو د ټولنوالو ترمنځ اړیکې

بې له ستونزو په همدې بنسټونو ټینګې شي:«یا أیها الذینَ آمنوا إن جاءکم فاسقٌ بنبأ فتبینوا أن تُصِیبُوا قوماً بجهالةٍ فَتُصبِحُوا عَلی ما فَعَلتُم نادِمِین»(٤٢) ژباړه: ای هغو کسانو چې ایمان مو راوړئ که چېرته راغی تاسو ته کوم فاسق او بدکار په یوه خبر سره، نو تاسو ښه تحقیق پکې وکړئ ، له جهته د وېرې د دې چې وبه رسوئ تاسو یوه قوم لره ضرر او تاوان په ناپوهی سره نو وبه ګرځئ تاسو په هغه څه سره چې عمل مو کړی دی خفه او پښېمانه.
نو له پورتنیو آیتونو او دلایلو څخه ښه جوته شوه چې قرآن کریم د اړیکو په ټینګولو او د اطلاعاتو د لاس ته راوړلو په اړه غوره لارې روښانه کړي دي.

### ۳-۲- د آزادۍ نشتوالی او په قرآن کریم کې یې درملنه:

د آزادۍ نشتوالی که فکري وي یا جسمي د تاریکیو او نه پرمختګ ستره سرچینه ده چې د اسلام دین دواړه رد کړي دي او انسان یې د بنده له بنده ګی او فکري زندان څخه ژغورلی. حتی ځینو اصحابانو رضی الله عنهم خپل شخصي مالونه د مریانو په آزادولو کې وقف کړي او د اسلام دین د دې لارې د تعقیب لپاره غوره لارې ښوولي دي چې یوه له هغو څخه یې د قسم کفاره ده. همدارنګه یې د فکري آزادۍ، تر داسې حده پورې ملاتړ کړی چې حتی انسان ته د خپل خالق د عبادت او عقیدې ستره مسأله هم په اختیار ده نه په اجبار؛ او دا موضوع په قرآن کې د انسان د فکر او بیان د آزادۍ او خپلواکۍ تر ټولو غوره بېلګه ګڼل کېږي په داسې حال کې چې شرك د خدای پاك په وړاندې تر ټولو عظیمه ګناه ده او خالق تعالی ډېر پرې خواشینی کېږي خو سره له هغې یې هم په خپل کلام کې

فرمایلي دي چې:«لا إکراه فی الدین...»([٤٣]) یعني نشته زور او جبر د دین په قبلولو کې. نو پاك خدای انسان په خټه، طبیعت او فطرت کې آزاد پیدا کړی دی خو د انسانیت سمه او روښانه لاره یې هم مونږ ته څرګنده کړې ده، لکه څنګه چې د پورتني آیت شریف په دوام یې فرمایلي:«...قد تبین الرشد من الغي» یعني په تحقیق سره سمه او روښانه لار جوته او ښکاره ده له ناسمې او ورکې لارې څخه. او په یو بل ځای کې څښتن تعالی مونږ ته د سمې لارې پته راکوي او مراجع یې راښئ:«ذٰلِکَ الکِتٰبُ لاَرَیبَ فِیهِ هُدًی لِّلمُتَّقِینَ.»([٤٤]) یعنی دغه کتاب(قران) کې هېڅ شك او شبهه نشته، په دې کې،(د سمې لارې د موندلو) هدایت دی لپاره د متقیانو(هغه کسان چې په خپلو اعمالو کې خدای پاك په ځان باندې شاهد او ناظر ګڼي او له هغه څخه وېرېږي.).

انسان ته د خدای پاك له لوري د هدایت رالېږل او بیا هغوی سمې او روښانه لارې ته رابلل په خپله د انسان د فطري او فکري آزادۍ حقیقت رابرسېره کوي که نه نو څښتن تعالی کولای شول چې زمونږ عقیدوي، مذهبي او فکري نظام او ژوند یې هم داسې خلق کړی وای لکه د انسان تنفسي سیستم، د زړه حرکات د وینې جریان، د سترګو رپېدل او داسې نور بدني جهازونه چې بې له هغو د انسان ژوند امکان نه لري او مونږ ته پکې اختیار نده راکړ شوی نو داچې زمونږ عقیدوي، مذهبي او فکري نظام یې په دې ډول نه بلکې آزاد پیدا کړی دی چې دا فطرت د انسان د مخیرتوب، آزادۍ او خپلواکۍ نښه ده او همدا ډول آزادي د انسانانو د طبیعت، فطرت او عادت غوښتنه او د هغوی د خوښۍ چینه ده.

خالق تعالی له هر پوه او متخصص څخه د انسان په طبیعت او د هغه په ګټو او ضرر ښه پوهېږي ځکه د دې مصنوع صانع الله دی نو بې له

شکه چې د ژوند کولو تګلاره یا په اوسنۍ اصطلاح کتلاك یې هم هغه تر بل هر چا بهتر جوړوي نو ځکه یې د انسان د ګټو په خاطر له هغوی څخه ځینې آزادۍ چې د انسان په ضرر تماميږي سلب کړي او هغه آزادۍ چې د انسان د طبيعت غوښتنه وي او په ګټه يې تماميږي ور په برخه کړي او ذهنيتونه يې پرې روښانه کړي دي.

## ۳-۳- بُخل يا بخيلي

## او په قرآن کريم کې يې درملنه:

بخل د تيارو هغه خړه وريځ ده چې په هر زړه باندې خوره شوه نو په تور تمونو او لوخړو کې يې د ځان او د بل حقوق تر پښو لاندې کوي، چې قرآن کريم يې داسې درملنه کوي:«فَأَمَّا مَنْ أَعْطَى وَاتَّقَى؛ وَصَدَّقَ بِالْحُسْنَى؛ فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْيُسْرَى؛ وَأَمَّا مَنْ بَخِلَ وَاسْتَغْنَى؛ وَكَذَّبَ بِالْحُسْنَى؛ فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْعُسْرَى؛ وَمَا يُغْنِي عَنْهُ مَالُهُ إِذَا تَرَدَّى؛ إِنَّ عَلَيْنَا لَلْهُدَى»(۵۴) ژباړه: هغه چا چې (له خپل مال څخه) څه ورکړل او له خدايه ووېرېده، او تصديق يې وکړ د نېکۍ(قرآن، رسول ص او د نېکو اعمالو) نو هغه ته به د آسانيو په لور تګ آسانه کړو، او هغه چا چې بخيلي او سرغړونه وکړه او تکذيب يې وکړ د نېکۍ نو هغه ته به د سختيو په لور لاره آسانه کړو، او مال به يې له هغه څخه(عذاب د خدای) دفع نه شي کړای کله چې په عذاب کې واچولی شي؛ په تحقيق سره د سمې لارې ښودل پر مونږ دي.

نو څرګنده شوه چې د بخيلۍ توره تياره دروازه هم قرآن کريم بنده کړې ده او ذهنيتونه يې د لورېينې، مرستې او بل ته د خدمت په رڼا روښانه کړي دي.

### ۳-۴- حسد

### او په قرآن کریم کې یې درملنه:

حسد د تیارو او د خپلو افکارو د وژلو او بېځایه مشغولولو تپه تیاره نړۍ ده، که کوم بدبخته انسان ورننوځي نو بیا به د ورځې په رڼا او د شپې په تیارو کې له ځان او جهان سره د خیال په نړۍ کې په جګړه بوخت وي، د نړۍ پرمختګونه او د بل علمي او مادي لاس ته راوړنې به یې سخت ځوروي او تل به له خپلو افکارو سره لاس او ګرېوان وي؛ که ووایو چې حسد د انسان د افکارو او حافظې وېروس یا مېکروب او د روغتیا وژونکی دی نو بالکل پرځای خبره ده ځکه ذهن او افکار داسې مشغولوي او بطې کوي لکه کمپیوټر چې په وېروس اخته شي او له هر کار او پرمختګ څخه یې پاتې کړي. ذهن د انسان د وجود د هر فعالیت او سیستم د کنترول مرکز دی نو د ذهن نارامي د وجود په ټولو فیزیکي او معنوي سیستمونو، فعالیتونو او په اصطلاح سافت ویرونو منفي اغېز کوي چې په پایله کې انسان خپله روغتیا هم له لاسه ورکوي.

د حسد د اضرارو په اړه د انیس د جریدې مؤسس غلام محی الدین انیس لیکي:«حسد که بد تر از شکایت و نارضائی است نیز هر خوبی را زوال میدهد. جمال روح، و جمال عقل و جمال صحت و طراوت چهره را گم میکند. پس تا میتوانی از اظهار نارضائی و شکایت و از حسد دور باش. این است وصیت های صحی من که بتو گفتم. و هر چند در متابعت آنها پابند شوی همانقدر از احتیاج طبیب مستغنی خواهی شد. چنانچه صحت رکن اولین سعادت است.»(٤٦)

«په پورتني متن کې په ريښتيا سره د ژوندانه د سوکالی او خوښۍ لپاره داسې قوي مطالب او لارښووني وړاندې شوي دي چې په عملي کولو يې نه تنها د ژوندانه د خوښۍ او سوکالۍ ګټه ترلاسه کېږي بلکې په روحي، ديني، رواني، روغتيايي، اقتصادي او داسې نورو برخو کې هم رغنده او برياليی رول لري. نو دا مطلب د عامه ذهنيت په روښانولو کې هم سترې او پياوړې اغېزې څلوي څکه په داسې قوي بڼه او طرز ليکل شوی چې د هر انسان روح، روان، عواطف، ذهنيت او افکار د هغو قبلولو ته آماده کوي.»(٤٧)

نو له همدې کبله خالق تعالی مونږ ته د دې ذهن او روغتيا وژونکې وېروس په مقابل کې د انتي وېروس د انستالولو لاره راښيي او له دې خطرناک وېروس څخه مو الله ج ته په پنا وړلو مأموروي: «قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ؛ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ، وَمِنْ شَرِّ غَاسِقٍ إِذَا وَقَبَ؛ وَمِنْ شَرِّ النَّفَّاثَاتِ فِي الْعُقَدِ؛ وَمِنْ شَرِّ حَاسِدٍ إِذَا حَسَدَ»(٤٨) ژباړه: ووايه چې پنا وړم رب د سهار ته، له شر د هغه څه چې پيدا کړي يې دي، او له شر د شپې څخه کله چې تپه تياره شي، او له شر د پو کوونکو څخه(د سحر او جادو) په غوټو کې، او له شر د حسد کوونکو څخه کله چې خپل حسد څرګند کړي.

د پورتني مبارک سورت تعبيراتو، کلماتو او استعارو ته که ځير شو نو د حسد اصلي توروالی او اضرار به ښه وپېژنو: لومړی دا چې حسد داسې بد ذهني مکروب دی چې په مادي او عادي موادو او موضوعاتو يې درملنه ناممکنه ده نو څکه يې د درملنې لپاره په ستر ذات باندې پنا غوښتل ښودل شوي دي. دوهم دا چې خالق تعالی په دې مبارک آيت کې ځان ته رب د سهار(سپيده دم) خطاب کړی، او د سهار خاصيت دا ده چې تيارې له منځه وړي نو الله ج ته پنا وړل هم د حسد تورې او داسې نورې تيارې له

منځه وړي او انسان لکه د سهار په څېر تازه کوي؛ دریم یې انسان له شر د شپې څخه د الله په لور پنا وړلو ته متوجه کړی، له دې څخه مونږ هغه اړیکو ته چې د شپې د تیارو او د حسد د تیارو تر منځ دي ځیر کوي. څلورم: له ډېر حسد څخه راټوکېدلي سحر او جادو له شر څخه مو د خدای په لور پنا وړلو باندې مأموروي ځکه په چا باندې سحر کول له انتها حسد څخه دلالت کوي چې په هغه انسان یې د ژوند ښېګڼې نه لورېږي او د هغو د پرې کولو په موخه سحر ته متوسل کېږي. په پنځم قدم کې بیا له څو تاریکیو او استعارو وروسته د حسد کلمه په ځرګنده یادوي او د حسد له تاریکیو څخه د خدای پاک په لور پنا وړلو لاره راښیي.

نو وینو چې قرآن کریم مونږ د حسد له تیارو او ویروسونو څخه هم ژغوري او د نجات لارې یې راښي.

## ۳-۵- د اړیکو پرېکول(قطع صله رحمي) او په قرآن کریم کې یې درملنه:

له دوستانو سره د اړیکو پرېکول د عامه ذهنیت د تیارو او جهالت یو بل داسې ستر لامل ده چې انسان د انعزال او زوال په داسې پنجرې کې بندي ساتي کومه چې مبتلي یې د حسد، کینې، بغض، قهر، ډار او بالآخره د جنون له داسې شپږ اړخیزو چړو څخه جوړې شوي وي چې نه بل زړه ورنیږدې کولای شي او نه هم خپله ترې وتلای شي بلکې همالته په دې بده پنجره کې له یوې خوا د خپل زړه او رګونو وینې څښي او له بلې خوا د وجود او اعصابو حجرات خوري او له دریم لوري څخه له پنجرې څخه د باندې دوستانو زړونه او لاسونه په وینو لړي ځکه هغه دوستان یې چې له

دې پنجرې څخه د باندې د دوستی په آزاده فضا کې اوسېږي د هغه په حال يې په ريښتيا زړه سوځي خو هغه چې د دې تنگې پنجرې په دننه کې بند ده برخلاف يې هغوی ته له قهره ويني ځوښېږي او خپل ټول غمونه له هغوی انگېري او له ځلورم مهم او خطرناک لوري څخه د دې اعمالو په واسطه له خپل خالق سره خپله رابطه شلوي ځکه په يو مبارک حديث کې چې له عايشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا څخه روايت ده رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم فرمايلي دي چې:

«إِنَّ الرَّحِمَ مُعَلَّقَةٌ بِالْعَرْشِ تَقُولُ: مَنْ وَصَلَنِي وَصَلَهُ اللَّهُ، وَمَنْ قَطَعَنِي قَطَعَهُ اللَّهُ»(٤٩) (صحيح البخاري)- په تحقيق سره رحم (خپلوي پالل) په عرش پورې معلق(ترلی) دی او وايي: چا چې زه وپاللم نو الله تعالی يې له خپل رحمت او مهربانۍ سره وصل کوي، او چا چې زه پرې کړم نو الله تعالی له هغه سره خپلې اړيکې پرېکوي.

په صحيحو رواياتو کې له رسول صلی الله عليه و سلم څخه روايت شوی دی چې د اړيکو د نه پرېکون په اړه يې فرمايلي دي: «لا تَقَاطَعُوا، وَلا تَدَابَرُوا، وَلا تَبَاغَضُوا، وَلا تَحَاسَدُوا، وَكُونُوا عِبَادَ اللهِ إِخْوَانًا»(٥٠)- اړيکې مه پرېکوئ، او يو بل ته شا مه اړوئ، او يو بل سره بغض مه کوئ، او يو بل سره حسد مه کوئ او يو بل سره د ورورگلوۍ په فضا کې د الله پاک مخلص بنده گان شئ.

له علي بن ابی طالب رضي الله عنه څخه روايت ده:«فَإِنِّي سَمِعْتُ أَبَا الْقَاسِمِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، يَقُولُ : إِنَّ صَلاحَ ذَاتِ الْبَيْنِ أَعْظَمُ مِنْ عَامَّةِ الصَّلاةِ وَالصِّيَامِ وَانْظُرُوا إِلَى ذَوِي أَرْحَامِكُمْ فَصِلُوهُمْ يُهَوِّنُ اللَّهُ عَلَيْكُمُ الْحِسَابَ»(٥١)- له علي رضی الله عنه څخه روايت ده چې فرمايي: په تحقيق سره ما اورېدلي دي له ابوالقاسم صلی الله عليه وسلم څخه چې

فرمايلي يې دي: په تحقيق سره صلح او آشتي په ټولنه کې له کلونو لمانځه او روژې څخه با ارزښته ده، او توجه وکړئ خپلو اقاربو ته او اړيکې ورسره ټينگې وساتئ! الله پاک به تاسو سره په آسانی سره حساب وکړي.

او هغه کس چې له خپلوانو سره بدون له شرعي مبرر څخه خپلولي شلوي نظر په دې مبارک حديث جنت ته نه داخلېږي:«لا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ قَاطِعٌ قَالَ يُرِيدُ الرَّحِمِ»(٥٢)- يعنې څوک چې له خپلوانو يا رشته دارانو سره اړيکې پرې کوي جنت ته نه داخلېږي.

او هغه عمل چې ژر يې د الله پاک له لوري بدله ورکول کېږي هغه رحم يا د اړيکو پالل دي، که چا وپالـه نېکه بدله او که يې وشلوله بده بدله ورته ورکول کېږي، لکه په دې مبارک حديث کې چې راغلي:«قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:" ما مِنْ ذَنْبٍ أَجْدَرُ أَنْ يُعَجِّلَ اللهُ تَعَالَى لِصَاحِبِهِ الْعُقُوْبَةَ في الدُّنْيَا مَعَ مَا يَدَّخِرُ لَهُ في الآخِرَةِ مِثْلُ الْبَغْيِ وَقَطِيْعَةِ الرِّحِمِ وَالْخَيَانَةِ وَالْكِذْبِ إِنَّ أَعْجَلَ الطَّاعَةِ ثَوَابًا صِلَةُ الرَّحِمِ، حَتَى إِنَّ أَهْلَ الْبَيْتِ لَيَكُونُونَ فُجَّارًا، فَتَنْمُو أَمْوَالُهُمْ، وَيَكْثُرُ عَدَدُهُمْ إِذَا تَوَاصَلُوا"»(٥٣)-رسول صلی الله عليه و سلم فرمايلي دي: هېڅ يوه گناه چې مرتکب يې د اخروي عذاب دمخه د عاجل دنيوي عذاب مستحق دي، له دې بله نشته چې څوک د يو چا په حقوقو تېرى وکړي او درواغ ووايي، او هغه نېک کار چې د آخرت له ثوابونو دمخه د عاجل دنيوي اجر او ثواب ډېر مستحق دی، خپلوي پالل دي، تر دې چې امکان لري، د کورنی غړي که څه هم گناهگار

وي خو د خپلوئ د پاللو له امله يې په ځان او مال کې الله ج برکت اچوي. همدا موضوع په يو بل حديث کې هم ياده شوې:([*]).

په بل حديث کې راځي چې: «إِنَّ أَبَرَّ الْبِرِّ صِلَةُ الْوَلَدِ أَهْلَ وُدِّ أَبِيْهِ» [٥٤]

قهرهم هغه بد عادت ده چې د رحم د له منځه وړلو او د دوستانو تر منځ د اړيکو پرې کولو ته لاره هواروي نو له همدې کبله خالق تعالی او رسول صلی الله عليه و سلم له قهر څخه منع کړې او هغه کسان چې د قهر له ضد عادتونو لکه صبر، عفو، نيکي او د قهر هظمولو څخه کار اخلي مرتبې ورکړي دي لکه خالق تعالی چې په دې اړه فرمايي:

«وَسَارِعُوا إِلَى مَغْفِرَةٍ مِنْ رَبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ أُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِينَ؛ الَّذِينَ يُنْفِقُونَ فِي السَّرَّاءِ وَالضَّرَّاءِ وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ»([٥٥])- او تلوار وکړئ په طرف د(هغو اعمالو چې سبب د) بښنې د رب ستاسو(او سبب د داخليدو) د جنت کېږي هغه چې پلنوالی يې د ځمکې او آسمانونو په کچه ده او د متقيانو لپاره تيار کړی شوی دی؛ (متقيان) هغه کسان دي چې(د الله په نوم) خيراتونه ورکوي په آسانی او سختی کې (او هغوی) چې زغمونکي د قهر وي(سره له قدرته) او عفوه کوونکي وي خلکو لره، او الله ج خوښوي نيکي کوونکي.

---

([*])-«عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ, قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:"إِنَّ أَعْجَلَ الطَّاعَةِ ثَوَابًا صِلَةُ الرَّحِمِ، وَإِنَّ أَهْلَ الْبَيْتِ لَيَكُونُونَ فُجَّارًا، فَتَنْمُو أَمْوَالُهُمْ، وَيَكْثُرُ عَدَدُهُمْ إِذَا وَصَلُوا أَرْحَامَهُمْ، وَإِنَّ أَعْجَلَ الْمَعْصِيَةِ عُقُوبَةً الْبَغْيُ وَالْخِيَانَةُ، وَالْيَمِينُ الْغَمُوسُ تُذْهِبُ الْمَالَ، وَتُقِلُّ فِي الرَّحِمِ، وَتَذَرُ الدِّيَارَ بَلاقِعَ"»المؤلف: سليمان بن أحمد بن أيوب بن مطير اللخمي الشامي، أبو القاسم الطبراني (المتوفى:٣٦٠هـ)، المعجم الكبير، مصدر الكتاب: ملفات وورد على ملتقى أهل الحديث http://www.ahlalhdeeth.com [الكتاب مرقم آليا غير موافق للمطبوع]، رقم الحديث ٣٦٨،الجزء١٩، ص١٥٠.

همدارنګه د قهر د زغملو په اړه د رسول صلی الله علیه وسلم په احادیثو کې هم ډېرې توصیې شوي څکه قهر د کورنی، دوستانو او ټولنې تر منځ د اړیکو مستحکم پېرې پرې کوي او د خپلولی ستنې نړوي:

«عن معاذ بن أنس(رض) قال، قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: مَنْ كَظَمَ غَيْظاً وَهُوَ قَادِرٌ عَلَى أَنْ يُنْفِذَهُ دَعَاهُ الله عَلَى رُؤُوسِ الخَلاَئِقِ حَتَّى يُخَيِّرَهُ مِنَ الحُورِ الْعَيْنِ يُزَوِّجُهُ مِنْهَا مَا شَاءَ».تخريج السيوطي([٥٦])- له معاذ څوی د أنس(رض) څخه روایت ده چې رسول صلی الله علیه و سلم فرمایلي دي: چاچې په داسې حال کې خپل قهر وخوړ(په خپل ځان کې یې بند کړ او د باندې یې را ونه ایست) چې په نافذولو یې توان هم درلود، نو خالق تعالی به یې د ټولو مخلوقاتو په سر کې حاضر کړي او اختیار به ورکړي چې له هرې نرګسینې حورې سره یې خوښه وي(واده وکړي).

قهر هغه څه ده چې د دوستانو او رشته دارانو تر منځ د رحم او اړیکو د له منځ تګ سبب کېږي او د قهر خوړل د دې ستر ناورین دروازې بندوي چې د اسلام مبارک دین په څومره ښو مکافاتو او مجازاتو دغه ور په ډېر مهارت سره بند کړی دی تر څو د مسلمانانو تر منځ د رحم لمن ارته او د جنت لاره هواره شي.

## ۳-۶- ظُلْمْ او بې عدالتي

## او په قرآن کریم کې یې درملنه:

دا پخپله د تیارو او د ذهنیتونو د مسموم کولو کان یا معدن ده چې په عامه ذهنیتونو کې ډېرې نااميدی، ناخوالې، بې باوری، د تربګنیو او جګړو فرهنګ او داسې نورې تورې سپورې ستونزې زېږوي چې قرآن

کریم یې په صراحت سره مخه نیسي او د حل لارې یې روښانوي؛ العدل ذات په دې مبارک آیت کې له ظلم څخه په ډاګه خپله بېزاري یا بداېسېدنه اعلانوي: «وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّالِمِينَ»(٥٧) ژباړه: او الله ج نه خوښوي ظالمان.

او په دې بل مبارک آیت کې په ظلم سره د يو تن وژل د ټول بشریت وژل ګڼې:«مَنْ قَتَلَ نَفْسًا بِغَيْرِ نَفْسٍ أَوْ فَسَادٍ فِي الْأَرْضِ فَكَأَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِيعًا وَمَنْ أَحْيَاهَا فَكَأَنَّمَا أَحْيَا النَّاسَ جَمِيعًا»(٥٨) ژباړه: چا چې يو نفس بې له قصاص يا فساد څخه وواژه لکه چې ټول خلک یې وژلي وي، او چا چې ژوندی کړ(له مرګ څخه د چا د ژغورلو سبب شو) لکه چې ټول بشریت یې ژوندی کړی(ژغورلی وي).

او په دې مبارک آیت کې خالق تعالی د ظلم څېره نوره هم څرګندوي چې ظلم یوازې له نورو سره نه بلکې له ځان سره هم کېدای شي او په حقیقت کې هر ظلم اګر که له بل سره هم وي هغه له خپل ځان سره ظلم ده ځکه مظلوم به آخر په الهي محکمه کې خپل حق ته رسېږي او اصلي زیان ګالونکی به ظالم وي:«سَاءَ مَثَلًا الْقَوْمُ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَأَنْفُسَهُمْ كَانُوا يَظْلِمُونَ»(٥٩) ژباړه: بد دی مثال د هغه قوم چې زمونږ آیتونو ته یې نسبت د درواغو کړی وي او په خپلو نفسونو باندې یې ظلم کړی و.

په دې مبارک آیت کې مونږ ته حال او فرجام د ظالمانو بیانوي تر څو د هرې زمانې ظالمان له هغوی څخه پند واخلي او له ظلم څخه لاس په سر شي:«كَدَأْبِ آلِ فِرْعَوْنَ وَالَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ كَذَّبُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ فَأَهْلَكْنَاهُمْ بِذُنُوبِهِمْ وَأَغْرَقْنَا آلَ فِرْعَوْنَ وَكُلٌّ كَانُوا ظَالِمِينَ»(٦٠) ژباړه: او (حال د دوی) لکه حال د تابعانو د فرعون دی(له الله سره) او(لکه حال) د هغو کسانو چې پخوا له دوی څخه وو، نسبت د دروغو یې کړی و آیتونو د رب خپل ته، نو

هلاک مو کړل دوی په سبب د ګناهونو د دوی او ډوب مو کړل تابعان د فرعون، او هغوی ټول ظالمان وو.

او په دې مبارک آیت کې الله ج د خپلو رسولانو یوه مهمه دنده د حقوقو پرځای کول او د عدل قایمول ګڼي:«لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنَاتِ وَأَنْزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَابَ وَالْمِيزَانَ لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ»(٦١) ژباړه: په تحقیق سره لیږلي وو مونږه خپل رسولان په ښکاره دلایلو او نازل کړی مو و له هغوی سره کتاب او تله(قواعد د عدل) لپاره د دې چې ودریږي خلک په انصاف او عدالت باندې.

او په دې مبارک آیت کې الله تعالی خپل رسول داود علیه السلام ته په حق او عدالت باندې د حکم کولو امر کوي او په دې برخه کې هغه په مخ د ځمکه کې خپل خلیفه بولي، او د حق او عدالت له لارې څخه د ښویدو خطر ته مو متوجه کوي او ترې ویروي مو چې هغه د هوا او شیطان لاره ده:«يَا دَاوُودُ إِنَّا جَعَلْنَاكَ خَلِيفَةً فِي الْأَرْضِ فَاحْكُمْ بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعِ الْهَوَى فَيُضِلَّكَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ إِنَّ الَّذِينَ يَضِلُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ بِمَا نَسُوا يَوْمَ الْحِسَابِ»(٦٢). ژباړه: اې داووده بېشکه مونږ ګرځولی یې ته په ځمکه کې خپل خلیفه نو په منځ د خلکو کې په حقه سره حکم وکړه او تابعداري د هوا(نفس او شیطان) مکوه چې ګمراه به دې کړي له لارې د الله څخه، په تحقیق سره هغه کسان چې ګمراه کیږي له لارې د خدای پاک څخه هغوی لره سخت عذاب ده په سبب د دې چې هغوی ورځ د حساب هېره کړې وه.

او په دې مبارک آیت کې خالق تعالی د عدالت د تأمینولو، ښېګڼو او د دوستانو د حقوقو په اداء کولو امر کوي:«إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ

وَإِيتَاءِ ذِي الْقُرْبَى»(٦٣) ژباړه: په تحقیق سره الله تعالی امر کوي(تاسو ته) په عدل، ښېګڼو او خپلوانو ته په ورکړه سره.

او په دې مبارک آیت کې د ظالمانو فرجام او انجام ته اشاره ده چې که سره له دومره لارښوونو بیا هم څوک ظلم ته لاس اچوي هغه په حقیقت کې په خپل ځان ظلم کوي او سخت عذاب به ورته ورسېږي:«وَإِذَا رَأَى الَّذِينَ ظَلَمُوا الْعَذَابَ فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمْ وَلَا هُمْ يُنْظَرُونَ»(٦٤) ژباړه: او کله چې ويني هغه کسان چې ظلم يې کړی دی(پر نفسونو خپلو)، عذاب(د دوزخ)؛ نو نه به له هغوی څخه کم کړی شي(دغه عذاب) او نه به مهلت ورکړل شي.

بیا هم جوته شوه چې قرآن کریم انسان د ظلم او حق تلفۍ له تیارو او ناخوالو څخه ژغورلی او د عدالت او حق رسولو په سوکالۍ یې عامه ذهنیتونه آرامه، ډاډه او روښانه ساتلي دي.

## ۳-۷- د خالق نافرماني او د شیطان پیروي او په قرآن کریم کې یې درملنه:

دا د تېرو تیارو مور ده، د تور تمونو تولي سرچینې پکې تمثیلېدلای شي خو ځینې موضوعات مې د ډېر اهمیت او خطرناکۍ له کبله په ځانګړې توګه هم یاد کړي او څېړلي دي. د خالق نافرماني او د شیطان پیروي، انسان له حیوان څخه هم ټیټ او سپکوي، حیوان هم خپل دښمن پېژني، یا مبارزه ورسره کوي او یا ځان ترې بچوي خو د الله نافرمانه بنده باندې د هغه دښمن(شیطان) ځینې وخت داسې لوبې کوي او داسې بد اعمال پرې انجاموي چې حیوان ترې ننګ او عار کوي؛ په دې مبارک آیت کې

خالق تعالی له هرڅه وړاندې مونږ ته خپل دښمن راپه ګوته کوي او د هغه له دوستی او پیروئ څخه مو وېروي:«أَلَمْ أَعْهَدْ إِلَيْكُمْ يَا بَنِي آدَمَ أَنْ لَا تَعْبُدُوا الشَّيْطَانَ إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُبِينٌ؛ وَأَنِ اعْبُدُونِي هَذَا صِرَاطٌ مُسْتَقِيمٌ؛ وَلَقَدْ أَضَلَّ مِنْكُمْ جِبِلًّا كَثِيرًا أَفَلَمْ تَكُونُوا تَعْقِلُونَ»(٦٥) ژباړه: آیا تاسو ته مې حکم نه و کړی(په ژبو د رسولانو سره)، اې د آدم(علیه السلام) اولادې! چې د شیطان پیروي به نه کوئ!! چې په تحقیق سره هغه ستاسو ښکاره دښمن دی؛ (او داسې حکم مې نه و کړی؟ بلکه کړی مې و) چې عبادت کوئ(یواځې) زما دغه(عبادت زما) لاره ده سمه(چې جنت ته مو رهنمایي کوي) او په تحقیق سره ګمراه کړي وو(دغه شیطان) له تاسې څخه ډېر خلک، آیا پس نه یاستئ تاسې داسې(خلک) چې له عقل څخه کار واخلئ.

او په دې مبارک آیت کې خالق تعالی یو ځل بیا مونږ ته زمونږ دښمن راپه ګوته کوي او د هغه تابعداري سبب د شقاوت او بد بختی ګڼي:«فَقُلْنَا يَا آدَمُ إِنَّ هَذَا عَدُوٌّ لَكَ وَلِزَوْجِكَ فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا مِنَ الْجَنَّةِ فَتَشْقَى»(٦٦). ژباړه: نو وويل مونږ: اې آدمه! په تحقیق سره دا(شیطان) د تا او ستا د مېرمنې دښمن دی، پس ومو نه باسي له جنت څخه چې وبه لوېږئ تاسو په سختیو کې.

او په دې مبارکو آیتونو کې الله ج په ډېرې څرګنتیا سره بیانوي چې هدایت، روښانتیا، روښانولي، لارلیدنه، بصیرت، رڼا او نېکمرغي زما په لارښوونو کې ده او که چا د دې ښکاره رڼا او روښانتیا لیدنه او متابعت ونکړ نو په ورځ د آخرت به ړوند راپاڅول شي او ړوند به حشر کېږي ځکه دی په دنیا کې د ځلانده رڼا له لیدو څخه ړوند او په تیارو کې اوسېدلی و:«فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُمْ مِنِّي هُدًى فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَايَ فَلَا يَضِلُّ وَلَا يَشْقَى؛ وَمَنْ أَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنْكًا وَنَحْشُرُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْمَى؛ قَالَ رَبِّ لِمَ

حَشَرْتَنِي أَعْمَى وَقَدْ كُنْتُ بَصِيرًا؛ قَالَ كَذَلِكَ أَتَتْكَ آيَاتُنَا فَنَسِيتَهَا وَكَذَلِكَ الْيَوْمَ تُنْسَى»(٦٧). ژباړه: نو کله چې زما له لوري ښخه تاسو ته لارښوونه وشوه، نو هغه چا یې چې متابعت وکړ نو هغه نه ګمراه کېږي او نه به په مشقت کې ولوېږي؛ او هغه چا چې شا واړوله زما له یاده(پنده) نو په تحقیق سره هغه لره تنګ او سخت ژوند ده(په دنیا یا سخت عذاب په قبر کې) او حشر به کړو دی(په ورځ د قیامت کې) ړوند؛ وبه وایي دی: ولې دې زه ړوند حشر کړی یم(راوستی یم د حشر میدان ته) او په داسې حال کې چې زه لیدونکی وم؛ وفرمایل(الله ج) همداسې راغلي وو تاته آیاتونه زمونږ پس هېر کړي وو تا هغه(آیتونه) او همداسې به ته نن ورځ هېر کړل شې(په عذاب کې به پرېښودل شې).

دلته هم جوته شوه چې خالق تعالی انسان د شیطان له تاریکو او فاسدو امرونو او متابعت ښخه ژغوري او خپلې روښانه لارې ته یې رابلي چې په قرآن کریم کې تمثیل شوې ده او په متابعت یې ذهنیتونه روښانېږي.

### ۳-۸- په ټولنه کې د فساد د خپرېدو غوښتنه او په قرآن کریم کې یې درملنه:

فساد د ټولنې د عامه ذهنیتونو د تتولو داسې توره مرجع ده چې افکارو ته د هر پرمختګ او نورانیت لارې بندوي او د ناوړو چارو په ګړنګونو کې یې داسې راپچاړ کوي چې تور تمونه یې د انسان پر زړه، افکارو او ټولو حواسو خیمه وهي او په رنګارنګ دنیوي او اخروي عذابونو، سپکوالي او بې عفتیو یې اخته کوي؛ چې خالق تعالی له فساد ښخه ټول بشریت منع کوي:«وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ»(٦٨) ژباړه: او مه

کېږئ تاسو پر مخ د ځمکې فساد کوونکي. همدارنګه خالق تعالی د مفسدانو لپاره د عذاب وعده کوي ترڅو خلک د ځمکې پر مخ فساد څخه ځان وژغوري:«الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ زِدْنَاهُمْ عَذَابًا فَوْقَ الْعَذَابِ بِمَا كَانُوا يُفْسِدُونَ»(٦٩) ژباړه: هغه کسان چې کافران شوي دي او اړولي یې دي(نور خلک هم په دنیا کې) له لارې د خدای پاک څخه، زیات به کړو مونږ هغوی ته عذاب د پاسه د بل عذاب په سبب د دې چې دوی فساد کولو(په دنیا کې، چې کفر او د خلکو منع کول و له اسلام څخه).

او په دې مبارک آیت کې الله تعالی یوځل بیا هغه کسان چې فساد کوي په ځمکه کې د آخرت له عذاب څخه وېروي:«الَّذِينَ يُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ وَلَا يُصْلِحُونَ...فَيَأْخُذَكُمْ عَذَابُ يَوْمٍ عَظِيمٍ(٧٠) ژباړه: هغه کسان چې فساد کوي په ځمکه کې او نیکي نه کوي...نو وبه نیسي(الله) تاسو په عذاب د ورځې لويې.

او په دې مبارک آیت کې الله ج د فساد له لارو او فحشاء څخه خپل بنده ګان منع کوي:«وَيَنْهَى عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنْكَرِ وَالْبَغْيِ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ»(٧١) ژباړه: او(الله تعالی) منع کوي(تاسې) له قبیحو(بې حیا) او بدو کارونو څخه او له سرغړونې څخه، پند درکوي تاسې ته(په دغو اوامرو او نواهیو سره) لپاره د دې چې تاسې پند واخلئ.

نو وګورئ چې قرآن کریم په څومره ښه وجه انسان د فساد او هر راز بدو او مضرو چارو له تاریکیو څخه د نېکیو رڼا ته رابلي او عامه ذهنیتونه د روښانولی په رڼو اوبو کې لمبوي، پاکوي او ځلوي.

## ۳-۹- د حلال او حرام نه پېژندل

## او په قرآن کریم کې یې درملنه:

د حلالو او حرامو نه پېژندل په حقیقت کې د رڼا او تاریکیو، مکروب او ویټامینونو، صحت او ناروغیو، پاکو او ناپاکو، خپلو او پردیو او مور او مېرمنې تر منځ تفکیک نه کول او نه پېژندل دي؛ په دې مبارک آیت کې خالق تعالی مونږ له دې څخه منع کوي چې په خپل سر بې له علم څخه ځینو شیانو ته حلال او ځینو ته حرام ووایو:«وَلَا تَقُولُوا لِمَا تَصِفُ أَلْسِنَتُكُمُ الْكَذِبَ هَذَا حَلَالٌ وَهَذَا حَرَامٌ لِتَفْتَرُوا عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ إِنَّ الَّذِينَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُونَ؛ مَتَاعٌ قَلِيلٌ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ»(۷۲) ژباړه: او مه وایئ له دې جهته چې وایي ژبې ستاسې په خدای باندې دروغ چې دا حلال دي او دا حرام دي د پاره د دې چې وتړئ په خدای باندې دروغ؛ په تحقیق سره هغه کسان چې په خدای باندې دروغ تړي، له اور د دوزخ څخه نه شي خلاصېدلی؛ لږ ګټه ده(دوی ته په دنیا کې) او هغوی لره عذاب دردناک ده(په آخرت کې).

او په دې مبارکو آیتونو کې خالق تعالی پاکیزه او ګټور خوراکونه حلال ګرځولي او هغه خوراکونه یې حرام کړي کوم چې د انسان روغتیا، افکارو، روحانیت او نورانیت ته ضرر رسوي او دا ټول د نن ورځې پرمختللو وسایلو، طبابت او تحقیقاتو ثابته کړې ده چې حرام څیزونه انسان ته هر اړخیز ضرورنه رسوي چې په اړه یې خالق تعالی فرمایي:«فَكُلُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ حَلَالًا طَيِّبًا وَاشْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ إِنْ كُنْتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ؛ إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنْزِيرِ وَمَا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللَّهِ بِهِ فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَلَا عَادٍ، فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ»(۷۳). ژباړه: نو خورئ له هغه څه نه چې درکړي دي تاسو ته الله ج حلال پاکیزه او شکر اداء کړئ د نعمت د خدای پاک که یئ تاسو چې خاص همده لره عبادت کوئ؛ په تحقیق سره حرام کړي دي الله ج په تاسو باندې مرداره، او(بهېدونکې) وینه، او د خنزیر

غوښه، او هغه ذبح شوی حیوان چې غیر له خدای پاک څخه په بل نوم ذبح شوی وي، نو څوک چې مجبور شو چې نه وي ظلم کوونکی او تجاوز کوونکی له حد څخه، نو په تحقیق سره الله ج ښنونکی او مهربان دی.

او په دې مبارکو آیتونو کې خالق تعالی مونږ ته د تاریکیو او له روښانه انساني ژوند څخه د وتو ځینې لارې بندې کړي او د هغو انجامول یې حرام ګرځولي تر څو عامه ذهنیتونه د انسانیت او روښانیت په لور سوق شي:«يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنْصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ؛ إِنَّمَا يُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَنْ يُوقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ وَعَنِ الصَّلَاةِ فَهَلْ أَنْتُمْ مُنْتَهُونَ»([٧٤]). ژباړه: اې هغه کسانو چې ایمان یې راوړی په تحقیق سره شراب او جواری(قمار) او بوتان او غشي د فال پلیتي ده له عمل د شیطان څخه نو ځانونه وژغورئ له دې(ناوړه اعمالو) څخه ښایي چې تاسو له اور د دوزخ څخه نجات ومومئ، ښایي تاسو لره چې کامیاب شئ؛ په تحقیق سره شیطان غواړي چې د تاسو تر منځ تربګني او کینه واچوي په شرابو او جواري کې او د خدای پاک له ذکر او لمانځه څخه مو منع کوي، نو آیا تاسو منع کېدونکي یاست؟

او په دې مبارک آیت کې خالق تعالی په عدالت، نیکیو او دوستانو ته په ورکړه امر کوي او له فحشاء، بدو کارونو او سرغړونې څخه یې منع کوي تر څو ټولنیز او فردي حقوق پر ځای شي:«إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ وَإِيتَاءِ ذِي الْقُرْبَى وَيَنْهَى عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنْكَرِ وَالْبَغْيِ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ»([٧٥]) ژباړه: په تحقیق سره الله تعالی امر کوي(تاسو ته) په عدل، ښېګنو او خپلوانو ته په ورکړه سره، او(الله تعالی) منع کوي(تاسې) له

قبیحو(بې حیا) او بدو کارونو څخه او له سرغړونې څخه، پند درکوي تاسې ته(په دغو اوامرو او نواهیو سره) لپاره د دې چې تاسې پند واخلئ.

له دې ټولو دلایلو، آیتونو او لارښوونو څخه جوتیږي چې د نورانیت او روښانولی لاره د قرآن متابعت ده، د ذهنیتونو روښانولي په قرآن کې ده او د پرمختګ او تمدن پرمختللي قوانین هغه چې د انسان د خالق له خوا وضع شوي دي په قرآن کریم کې تمثیل شوي.

ځینې هغه کسان چې د روښانولی او روښانتیا په ماهیت او رڼا نه پوهیږي او د رڼا او تاریکی لارې یې نه دي پیدا کړي فکر کوي چې له انسانیت او سالم عرف او عادت څخه په وتلو، د اندامونو په ښکاره کولو په ځانګړې توګه د ښځینه اندامونو په لوڅولو، د لباس په تنګولو او د داسې نورو ناوړو چارو په اجراء کولو کې روښانولي نغښتي ده خو دې ته یې فکر نه ده رسېدلی چې که روښانولي او پرمختګ په دې اعمالو کې وای نو څاروي به له ټولو مخلوقاتو پرمختللي او روښانه وای؛ او دې ته یې هم پام نه ده کړی چې اوسنی پرمختللي او پېتې جامې چې کولای شي له ډېرو باندنیو آفتونو څخه هم د انسان روغتیا، روح او افکار وژغوري د انسان د زرګونو کلونو د فکري تولید او پرمختګ نتیجه او حاصل دي، د بشري ژوند په لومړیو کې، انسان د نن په څېر پرمختللي او د بدن له غړو سره متناسبې جامې نه پېژندلې او له ځان څخه به یې پوستکي او پوزي(بوریا) تاوول، او یا به د بېلابېلو ستونزو له کبله هغه هم په پوره ډول ورته نه پیدا کېدل. نو که د دې زماني کوم انسان په بربنډوالي کې روښانتیا او پرمختګ لټوي په حقیقت کې په زرګونو کلونه وروسته ځي او تر ټولو مرتجع او وروسته پاتې انسان ترې جوړیږي.

نو بیا هم جوتیږي چې د پرمختګ، روښانتیا او روښانولی لاره په قرآن کې ده چې د حضرت رسول انور صلی الله علیه وسلم له لارښوونو سره سم مو د الله ج له هر اړخیزو انوارو څخه برخه من کوي او له هر راز تاریکیو او بدمرغیو څخه مو ژغوري.

**پایلې:**

1. **شیطان او د هغه پیروي د عامه ذهنیتونو د تپو تیارو ستره مرجَع ده.**
2. **د اسلام مبارک دین د عامه ذهنیتونو د تیارو لارې بندې کړې دي.**
3. **قرآن کریم د روښانولی مستقیمه لاره ده چې له حقیقي نور سره انسان وصل کوي او د النور ذات په وصال ویاړمن کیږي.**
4. **رسول صلی الله علیه و سلم د روښانولی او نورانیت ستر لارښود دی.**
5. **د عامه ذهنیتونو د روښانولی او نورانیت ستره مرجع الله تعالی دی.**

**وړاندیزونه:**

1. **که څوک حقیقي نور او روښانولی ته رسېدل غواړي باید د قرآن کریم لاره د رسول صلی الله علیه وسلم په لارښوونه تعقیب کړي.**
2. **د عامه ذهنیتونو د ډګر چارواکي او کارکوونکي باید د قرآن کریم په پوهه او اسلامي روحیه سمبال وروزل شي تر څو د ټولنې عامه ذهنیتونه د واقعي روښانولی په لور سوق کړای شي.**

3. رسنۍ او د هغو چارواکي او کارکوونکي باید په دې ښه وپوهېږي چې د عامه ذهنیتونو د روښانولی لارې په قرآن کریم کې موندلای شي او وروسته له هغې يې د پلي کولو په موخه مناسبې سوژې او برنامې جوړې او خپرې کړي.
4. د ټولني وګړي باید د روښانولی د لارښود(حضرت محمد انور صلی الله علیه و سلم) په لارښوونه د روښانولی د لارې(قرآن کریم) په علم ځانونه سمبال او په دې لارې د نور اصلي مرجع(الله ج) ته ځانونه ورسوي او خپل ټول ژوند، مسیر، ذهنیت، افکار او اهداف روښانه او ځلانده کړي تر څو اصلي رڼا او کامیابۍ ته ورسېږي.

تمت بالخیر

قدرمنو لوستونکو!

دا لیکنه به داسې وخت کې هم ستاسو په لاس کې وي چې زه به نه یم او اعمال به مې قطع شوي وي، خو له تاسو څخه په درنښت هیله کوم چې ما له دعا څخه هېر نه کړئ! او زه مې خپله دعا د ټول اسلامي امت د بریالیتوب او د دواړو نړیو د نېکمرغیو په موخه خپل خالق ته وړاندې کوم.

## مأخذونه د حاشيو په ترتيب:

[1]- پوهاند حبيب الرحمن هاله، افکار عامه و تبليغات، ناشر: د آزاد افغانستان د ليکوالانو ټولنه، پېښور،١٣٧١ل کال، الف مخ.

[2]- دکتور سمير محمد حسين، الرأي العام الأسس النظرية والجوانب المنهجية، عالم الكتب، قاهره، ١٩٩٧م کال، ١٥ مخ.

[3] - Inam ur Rahman Pushkalavati, Journalism, University Book Agency, Peshawar PaKistan, 2006, P.82.

[4]- پوهاند حبيب الرحمن هاله، افکار عامه و تبليغات، ناشر: د آزاد افغانستان د ليکوالانو ټولنه، پېښور،١٣٧١ل کال، ٨ مخ.

[5]- سليمان بن أحمد بن أيوب أبو القاسم الطبراني، الْمُعْجَمُ الصَّغِيْرُ لِلطَّبْرَانِيِّ، تحقيق:محمد شكور محمود الحاج أمرير، الناشر: المكتب الإسلامي, دار عمار - بيروت, عمان، الطبعة الأولى ، ١٤٠٥هـ=١٩٨٥م، عدد الأجزاء : ٢، الجزء الثاني، ص١٣١.

[6]- البقرة/٩-١٢.

[7]- الأنعام/٨٢.

[8]- الجن/٢.

[9]- البقرة/٢.

[10]- الحشر/٧.

[11]- النساء/٥٩.

[12]- الكهف/١٠٩.

[13]- لقمان/٢٧.

[14]- دکتور نبيل جردي، الإعلام و المجتمع، د کويت پوهنتون، ١٩٩٨م، ١۴ مخ.

[15]- النور/ ٣٥.

[16]- عبدالهادي خان ترجمان، اسلام چرا نازل شد، انيس، ۶۶ گڼه، ١٣٠٨هـ ل کال، ۵ مخ.

[۱۷]- المائدة/ ۱۵.

[۱۸]- البقرة/ ۲۵۷.

[۱۹]- المائدة/ ۱۶-۱۵.

[۲۰]- معاون سرمحقق محمد شريف پاکرأی، رابطۀ علم و جهل، تبيان(مجلۀ ربعوار)، اکادمی علوم افغانستان، دورۀ سوم، شمارۀ مسلسل۲۸، ربع دوم سال ۱۳۸۹هـ ش، ص۲.

[۲۱]- الأنعام/ ۵۰.

[۲۲]- الرعد/ ۱۶.

[۲۳]- الزمر/ ۹.

[۲۴]- الأعراف/ ۱۷۲.

[۲۵]- الذاريات/ ۵۶.

[۲۶]- الإسراء/۷۰.

[۲۷]- البقرة/ ۱۶۳.

[۲۸]- الإخلاص/ ۴-۱.

[۲۹]- البقرة/ ۲۸.

[۳۰]- الزلزلة/ ۸-۷.

[۳۱]- لقمان/ ۲۰.

[۳۲]- البقرة/ ۲۹.

[۳۳]- الرحمن/ ۳۳.

[۳۴]- الحديد/ ۲۵.

[۳۵]- الأنعام/ ۱۲۶.

[۳۶]- الملک/ ۱۵.

[۳۷]- الجاثية/ ۱۳.

[۳۸]- البقرة/ ۱۲۰.

[٣٩]- الروم/ ٣٨.

[٤٠]- الحجرات/ ١٣.

[٤١]- آل عمران/ ١٣٧.

[٤٢]- الحجرات/ ۶ آيت.

[٤٣]- البقرة/ ٢٥۶.

[٤٤]- البقرة/ ٢.

[٤٥]- الليل/ ٥- ١٢.

[٤٦]- انيس، ١٩ ګنه، ١٣٠۶ ل کال، ٣ مخ..

[٤٧]- څېړنيار محمد داوُد ناظم، د انيس ملي جريده او د عامه ذهنيتونو په روښانولو کي د هغي ونډه، د افغانستان د علومو اکاډمي، کابل، ١٣٩٢هـ ل، ١۴٩مخ.

[٤٨]- الفلق/ ٥.

[٤٩]- البيهقي أحمد بن الحسين أبو بكر، الأسماء والصفات، المحقق: عبد الله بن محمد الحاشدي، الناشر: مكتبة السوادي – جدة، الطبعة الأولى، عدد الأجزاء: ٢، المكتبة الشاملة، الإصدار الثالث، الجزء الثاني، ص٢٣.

[٥٠]- الشيخ أبو محمد شحاتة السكندري، أَرْكَانُ الإِسْلامِ وَدَعَائِمُهُ عِنْدَ الرَّافِضَةِ الإِمَامِيَّةِ، المكتبة الشاملة، الإصدار الثالث، الجزء الأول، ص ٣٩.

[٥١]- سليمان بن أحمد بن أيوب بن مطير اللخمي الشامي، أبو القاسم الطبراني (المتوفى : ٣٦٠هـ)، المعجم الكبير، مصدر الكتاب : ملفات وورد على ملتقى أهل الحديث http://www.ahlalhdeeth.com [الكتاب مرقم آليا غير موافق للمطبوع]، المكتبة الشاملة، الإصدار الثالث، الجزء الأول، ص٧٩.

[٥٢]- أبو بكر محمد بن إسحاق بن خزيمة[٢٢٣هـ - ٣١١هـ]، كتاب التوحيد، المحقق: عبد العزيز بن إبراهيم الشهوان، الناشر: مكتبة الرشد – الرياض، الطبعة الخامسة، ١٤١٤هـ / ١٩٩٤م، المكتبة الشاملة، الإصدار الثالث، عدد الأجزاء:٢، الجزء الأول، ص٥٥١.

[٥٣]- سنن ابي داود، ج۴، ص۲۷۶، د حدیث شمېره:۴۹۰۲.

[٥٤]- سنن ابي داود، جلد۵، ص۳۵۳.

[٥٥]- آل عمران/۱۳۴.

[٥٦]- محمد ناصر الدين الألباني، صحيح وضعيف الجامع الصغير، مصدر الكتاب: برنامج منظومة التحقيقات الحديثية - المجاني - من إنتاج مركز نور الإسلام لأبحاث القرآن والسنة بالإسكندرية، الجزء ۲۳، ص۴۶۸.

[٥٧]- آل عمران/ ۱۴۰.

[٥٨]- المائدة/ ۳۲.

[٥٩]- الأعراف/ ۱۷۷.

[٦٠]- الأنفال/ ۵۴.

[٦١]- الحديد/ ۲۵.

[٦٢]- ص/ ۲۶.

[٦٣]- النحل/۹۰.

[٦٤]- النحل/ ۸۵.

[٦٥]- يس/ ۶۰- ۶۲.

[٦٦]- طه/ ۱۱۷.

[٦٧]- طه/ ۱۲۳- ۱۲۶.

[٦٨]- البقرة/ ۶۰.

[٦٩]- النحل/ ۸۸.

[٧٠]- الشعراء/ ۱۵۲، ۱۵۶.

[٧١]- النحل/۹۰.

[٧٢]- النحل/ ۱۱۶- ۱۱۷.

[٧٣]- النحل/ ۱۱۴- ۱۱۵.

[٧٤]- المائدة/۹۱-۹۰.

[٧٥]- النحل/۹۰.